«العثماني كتابتون»




# ضوابط الترکیب

بسم اللہ کی ترکیب ۲۱۵۴۲۴
لَا اِلٰہَ اِلَّا اللّٰہُ کی ترکیب ۱۱

# قدۃ العامل
شرح پشتو
# مائۃ عامل

ترکیب کلمات غریبہ ۶۰
اِنَّ، اَنَّ کی ترکیب ۲۲


تالیف
مفتی عطاء الرحمن ملتانی
صدر مدرس الجامعۃ الشرعیہ گوجرانوالہ
فون ـ ۲۵۹۱۸۳



ناشر
الجامعۃ الشرعیہ شمع کالونی جی ٹی روڈ گوجرانوالہ پاکستان

نام کتاب: ضوابط نحویہ (پشتو)
مصنف: مفتی عطاء الرحمن ملتانی

طبع اول: صفر ۱۴۲۳ھ

## ملنے کے پتے:

مدرسہ بحر العلوم توحید آباد مولانا قاری ظفر اللہ صاحب
جامعہ رحمانیہ فرید ٹاؤن ملتان مفتی عتیق الرحمن ربانی صاحب فون: ۵۵۱۷۳۷

مکتبہ رشیدیہ راولپنڈی — مکتبہ سید احمد شہید لاہور
مکتبہ رحمانیہ لاہور — ادارہ اسلامیات لاہور
المکتبۃ الحسینیہ بلاک ۱۸ سرگودھا — کتب خانہ مجیدیہ ملتان
مکتبہ رحمانیہ پشاور — مکتبۃ العارفی فیصل آباد
قدیمی کتب خانہ کراچی — مکتبہ اسلامیہ بنوری ٹاؤن کراچی
مکتبہ المعارف پشاور — کتب خانہ حقانیہ اکوڑہ خٹک
کتب خانہ رشیدیہ کوئٹہ — مکتبہ حنفیہ گوجرانوالا
مکتبہ نعمانیہ گوجرانوالا — اسلامی کتب خانہ سرگودھا
مکتبہ گلستان اسلام چوک بلاک ۱۱ سرگودھا

ناشر: المکتبۃ الشرعیۃ شمع کالونی جی ٹی روڈ گوجرانوالا

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم امّا بعد :

# الضّوابط للمرفوعات

د جمهور په نيز په مرفوعاتو کښې اصل فاعل دے او دامام سيبويه په نيز اصل مبتداء ده ، چه د هغې تفصيل احقر په (کاشفه) کښې کړے دے
ليکن هرکله چه د مبتداء افراد زيات دی ، دے وجے نه د "العزة للتکاثر" په بناء باندے مونږ د ټولونه وړاندے د مبتداء او خبر علامات او د هغې پيژندلو دپاره ضوابط ذکر کوو۔

## مبتداء او خبر

### د مبتداء او خبر پيژندلو اوله طريقه :

**ضابطه (۱) :** اصل په مبتداء کښې معرفه ده او اصل په خبر کښې نکره ده ، لهذا هرکله چه دوه اسمه مرفوع وی ۔ او حکم د (دے اونه دے) موجود وی ۔ نو چه کوم اسم معرفه وی هغه به مبتداء وی ۔ او چه کوم نکره وی هغه به خبر وی لکه زيد قائمٌ ، الله معبود ۔

**ضابطه (۲) :** او که چرے دواړه اسمونه معرفے وی ۔ نو اولنے به مبتداء وی او دويم به خبر وی لکه الله ربنا .....

محمد رسول الله -

**ضابطه ۳:** اوکه چرے یوه کلمه اسم وی او دویم ظرف وی نو هغه اسم به مبتداء وی او ظرف به خبر وی - لکه الحمد لله، فی الدار رجل، منها المبتدا والخبر -

**ضابطه ۴:** اوکه چرے د کلام په شروع کښے د معرفے نه پس جمله وی، اسمیه وی اوکه فعلیه وی، نو هغه اسم به مبتداء او مابعد جمله به خبر وی لکه هو الله احد الله یهدی من یشاء -

**ضابطه ۵:** که چرے د کلام په شروع کښے ضمیر منفصل راشی نو هغه به همیشه د پاره مبتداء وی - لکه هوالاول والاخر، هی اسم دفعل وحرف -

**دویمه طریقه** | مبتداء اکثر اسم جامد وی او خبر اکثر اسم مشتق وی، تیر شوی مثالونو کښے غور اوکړئ ! -

**دریمه طریقه** | په کوم اسم چه حکم لګی نو هغه به مبتداء وی، او چه کوم حکم وی هغه به خبر وی لکه زید عالم - الکلمة لفظ - الرحمن علم القران

آستاذانو ته پکار دی چه زیات نه زیات مثالونو سره بنه مشق اوکړی، دے د پاره چه د مبتداء خبر بنه طریقے سره پیژندګلی اوشی -

دا روستنئ دوه طریقے مختصرے هم دی او آسانے هم دی - او اخری طریقه قاعده کلیه ده، ددے زیات خیال اوساتئ -

**ضابطه ۶:** مبتداء همیشه د پاره اسم وی، او خبر کله

اسم دی او کله ظرف دی او کله فعل - تیر شوو مثالونو کښې غور اوکړئ -

**سوال :** ضرب فعل، من حرف، زید قائم جملة - اوّل مثال کښې فعل (ضرب) دویم مثال کښې (من) حرف، دریم مثال کښې جمله (زید قائم) مبتداء واقع ده، حال داچه تاسو اوفرمائیل چه مبتداء همیشه د پاره اسم وی - ؟

**جواب :** داسم درے قسمه دی (۱) اسم حقیقی (۲) اسم حکمی (۳) اسم تاویلی، دِے دیے نه دا ضابطه یاده ساتئ ! -

**ضابطه ۷ :** اسماءِ حقیقی لس دی (۱) اسم جامد (۲) اسم مصدر (۳) اسم فاعل (۴) اسم مفعول (۵) صفت مشبّه (۶) اسم تفضیل (۷) اسم آله (۸) اسم ظرف (۹) اسم مبالغه (۱۰) اسم منسوب -

**اسم حکمی :** هغه فعل ته وائی چه په هغې باندے د حروفِ مصدریه: (مَا، اَنْ، اَنَّ، کَیْ، لو، همزه تسویه) نه یو حرف داخل شی - اوهغه جملے ته وائی چه هغې باندے حرفِ اَنْ داخل شی لکه: ان تصوموا خیر لکم، و دوا لو تدهن فیدهنون واعلم ان الله علی کل شیئ قدیر -

**اسم تاویلی :** هغه فعل او حرف او جملے ته وئیلے کیږی چه هغې نه لفظ (یعنی ذات) مراد وی معنی مراد نه وی هغې لره - بتأویل هذا اللفظ او بتأویل هذا الترکیب اسم تاویلی گرځولے شی -

**جواب :** ستا په مثالونو کښې ضَرَبَ، مِنْ، زید قائم، نه مراد لفظ دے نو دا اسماء تاویلی شول، لهذا ددے په مبتداء

جو ړيد وکښې هيڅ اشکال نشته -

**سوال** تسمع بالمعيدی خير من ان تراه ، په دے کښې تسمع خو نه اسم حقيقی دے او نه اسم حکمی دے -
او نه اسم تاويلی دے بيا هم مبتداء جوړيږی ؟

**جواب:** ددے تحقيق په تنوير شرح د نحو مير کښې اُوګورئ !

**ضابطه ٨ :** مبتداء هميشه مرفوع وی او دعامل لفظی نه خالی وی ، تيرشوی مثالونو کښې غور اوکړئ !

**سوال :-** هل من خالق غير الله ، رب کاسية فی الدنيا عارية يوم القيمة ، بحسبك الله - دے مثالونو کښې (خالق ، کاسية بحسبك مبتداء مجروره ده او عاملِ لفظی پرے داخل هم دے -

**جواب: ضابطه ـــ ٩ ـــ:** ياد ساتل پکار دی چه مبتداء کله (بَا) (مِنْ) زائده او شبيه بالزائد (رُبَّ) سره لفظاً مجرور وی او محلاً مرفوع وی او داعواملِ لفظيه زائده دی چه ددے هيڅ اعتبار نشته -

**سوال :** تاسو عجيبه خبره اوکړه چه دا مبتداء مجرور لفظاً ده او مرفوع محلاً ده ، آيا دَيو اسم دَوَه اعرابه کيدے شی ؟

**جواب: ضابطه ـــ ١٠ ـــ:** هَوْ ، څو اسماء داسے دی چه دهغې دَوَه اعرابه دی مثلاً حروف مشبّه بالفعل ، او اسم دلائے نفی جنس ، افعال ناقصه او خبر د ماولا المشبهتين بليس ـــ منادی غير منصوب ، د مصدر فاعل يا مفعول چه کله هغه مضاف اليه وی -

**ضابطه ١١ :** مبتداء هميشه مسند اليه وی ليکن د مبتداء قسم ثانی مُسند وی - (تنوير يا کاشفه) کښې اوګورئ !

**ضابطه ۱۲:** مبتداء همیشه معرفه یا نکره مُخصّصه وی (د تخصیص د وجوهو دپاره تنویر اوګورئ!) لیکن د سیبویه او متقدمینو په نیز شرط نه دہ - (تنویر)

**ضابطه ۱۳:** خبر د مبتداء مفرد هم وی او جمله هم وی - مثلاً: الله خالق کل شیئ، ذالک الکتب لاریب فیه -

**ضابطه ۱۴:** بعضے الفاظ داسے دی چه هغه د مبتداء او خبر دپاره نواسخ دی، چه د هغې درے قسمه دی (۱) افعال - مثلاً افعال ناقصه او افعال مُقاربه - (۲) اسماء - مثلاً، مشتقات د افعال ناقصهٔ - (۳) حروف - مثلاً: حروف مشبّه بالفعل او ماولا مشبهتین بلیس، او لائے نفی جنس، تلک عشرة کاملة څه ضوابط د مبتداء او خبر دپاره د تنویر نه یاد کړئ! -

**نوټ:-** د افعال ناقصه او ماولا مشبهتین بلیس، حروفِ مشبه بالفعل او د لائے نفی جنس اسم او خبر دپاره په هغه علامات وی کوم چه مبتداء او خبر دپاره دی، ځکه چه دا هم په اصل کښے مبتداء او خبر دی -

## فاعل، نائب فاعل

**ضابطه ۱۵:** د فاعل پیژندګلی:

د دُولسُو صیغو فاعل متعین دے، د دوُو صیغو واحد مذکر غائب او واحده مؤنث غائبه نه علاوه د باق افعالو فاعل همیشه ضمیر متّصل وی، خواه که د ماضی، مضارع، جحد، نفی یا د امر او نهی صیغے وی، د هر ګردان د څوارلس صیغونه د — دولسُو صیغو فاعل خو متعین شو، او د هغې پیژندل بالکل آسان

شو، مثلاً: ضربا کښې (الف) ضمير د فاعل دے ضربتما کښې (تما) ضمير د فاعل دے، ضربوا کښې (واو) ضمير د فاعل دے ضربتم کښې (تم) ضمير د فاعل دے، ضربتا کښې (الف) ضمير د فاعل دے ضربت کښې (تِ) ضمير د فاعل دے۔

ضربن کښې (ن) ضمير د فاعل دے۔ ضربتن کښې (تن) ضمير د فاعل دے۔ ضربنا کښې (نا) ضمير د فاعل دے۔

د دوؤ او صيغو فاعل غير متعين دے، البته باقي دوه صيغے: يو واحد مذکر غائب، او بله واحده مؤنثه غائبه۔ د دے فاعل پيژندل لږ مشکل دي، ځکه چه د دے فاعل کله اسم ظاهر وي او کله ضمير وي۔ مثلا قام زيد، زيد قائم،

د دے پيژندل خو په اعتبار د معني سره کيږي، ليکن مختصر شان پيژندګلو داده: چه د کوم فعل فاعل معلومول غواړے نو د هغے اُردو کښې معني او کړه، او هغے سره لفظ د (کون يا کِس) او لګوه، او سوال وکړه، څه چه په جواب کښې راشي هغه به ئے فاعل وي، لکه خلق الله، مات زيد۔

دا ړنګ که چرے فعل متعدي وي نو د فاعل اُردو معني کښې لفظ د (نے) راځي لکه: اکل زيد، قتل بکر۔

استاذانو ته پکار دي، چه قران مجيد پرانزي۔ او په طالبانو باندے سبه مشقونه اُوکړي۔

**فائده:** هم دا تفصيل د نائب فاعل دے، چه که چرته فعل مجهول وي، نو د دولسو صيغو نائب فاعل به متعين وي، او د دوا و صيغو به غير متعين وي۔

**ضابطه ۱۶:** فاعل هميشه اسم وي (عام دے که حقيقي وي

که حکمی که تاویلی) -

**ضابطه ۱۷:** فاعل همیشه د پاره مرفوع وی -

**سوال:** کفی بالله، ما جاءنا من بشیر ولا نذیر، اسمع بهم-
دے مثالونو کښے خو فاعل مجرور دے، حال دا چه تاسو اووئیل
چه فاعل همیشه مرفوع وی ؟ -

**جواب:** دا حروف جاره (باء، من) زائده په فاعل باندے
داخلیږی - او دا یاد ساتئ چه د فعل تعجّب د دویم صیغے
(اَفْعِلْ بِهٖ) په فاعل باندے (باء) داخلول واجب دی -

**سوال:** د فعل تعجب د دویم صیغے په فاعل باندے د (باء)
داخلول وَلے واجب دی ؟

**جواب:** د دے وضاحت په (تنویر شرح نحو میر) کښے اوګورئ !

**ضابطه ۱۸:** نائب فاعل هم کله مجرور وی لکه ولما سقط
فی ایدیهم، نظرف الامر، خو په دے شرط چه حرف جر د تعلیل
د پاره نه وی -

**ضابطه ۱۹:** حکم المجرور بحرف جر زائد انه مرفوع
محلا او منصوب محلا نحو ما قیل من شیئ، و ماسعی فلان من
سعی یحمد علیه، وشبیه بالزائد منصوب علی الاستثناء بعد
خلا وعدا وحاشا و مرفوع علی الابتداءِ بعد رب -

**ضابطه ۲۰:** د ۲۳ لس صیغو نه پس په اسم ظاهر باندے
رفع لوستل جائز نه دی، لکه څنګه چه پس د فعل نه جر لوستل
جائز نه دی، ځکه چه فعل نه پس رفع د فاعل په وجه سره
وی، او د هغے فاعل خو ضمیر دے -

**ضابطه ۲۱:** د فعل افراد، تثنیه او جمع او تذکیر او تانیث

د فاعل تابع دی ۔ (تفصیل ئې په تنویر کښې اوګورئ !)

**ضابطه ۲۲:** نائب فاعل د فعل مجهول وی او فعل مجهول ۔ فعل متعدّی نه راځی نه د فعل لازم نه ۔

**ضابطه ۲۳:** څلور مفاعیل نائب فاعل نشی جوړیدے (۱) د باب د علمت دویم مفعول ۔ (۲) د باب د اعلمت دریم مفعول ۔ (۳) مفعول له ۔ (۴) مفعول معه ۔ باقی ټول مفاعیل نائب فاعل جوړیدے شی،

البته که چرے مثال کښې مفعول به موجود وی نو بل هیڅ یو نشی جوړیدے ۔ (علل او دلائل کاشفه شرح کافیه کښې اوګورئ)

د مرفوعاتو باقی اقسام د مبتداء او خبر لاندے داخل دی ۔

**ضابطه ۲۴:** دولس ۱۲ صیغو کښې د دړے صیغو فاعل به همیشه ضمیر مستتر وی، او د باقی نهو صیغو فاعل به همیشه د پاره ضمیر بارز وی ۔

# الضوابط للمنصوبات

## مفعول مطلق

**ضابطه ۲۵:** د مفعول مطلق شناخت او علامت: (۱) دا به همیشه د پاره مصدر وی او د فعل مذکور هم معنی به وی، (۲) دد ے دا دوه په معنی کښې به لفظ (نا) راځی لکه: اکلت اکلا، وکبره تکبیرا، والصافات صفا ۔

**ضابطه ۲۶:** مفعول مطلق او فعل کښې موافقت بحسب المعنی ضروری دے، لیکن موافقت بحسب اللفظ والباب ضروری نه دے لکه وتبتل الیه تبتیلا، رجع القهقری، قعدت جلوسا ۔

**ضابطه ۲۷:**— ومالتوكيد فوحد ابدا ÷
وثن واجمع غيره وافردا ÷

**ضابطه ۲۸:**— د مصدرنه علاوه يو څو اسمونه هم مفعول مطلق واقع كيږى. (۱) (كل) او (بعض) او (اى الكمالية) كله چه مصدرته مُضاف وى، لكه: فلا تميلوا كل الميل -

(۲) لفظ د (مااواى) شرطيه او استفهاميه -

(۳) صفت د مصدر - لكه: سرت احسن السير -

(۴) ضمير چه هغه طرف ته راجع وى، لكه: فانى اعذبه عذابا لا اعذبه احدا من العلمين -

(۵) اسم اشاره، چه د هغې مشاراليه مصدر وى، لكه: د هل اجتهدت اجتهادا حسنا په جواب كښې اوويلې شى: اجتهدت ذالك -

(۶) اسم مصدر، لكه: كلمت كلاما -

(۷) په نوع يا عدد باندې دلالت كوى، لكه: رجع القهقرى، فاجلدوهم ثمانين جلدة -

**فائده:**— اسم المصدر: ما ساوى المصدر فى الدلالة على معناه، وخالفه من ناحية الاشتقاق بنقص حروف -

**فائده:**— مصدر او اسم مصدر كښې لفظى فرق خو واضح دے.

او معنوى فرق دا دے: چه د مصدر دلالت په حدث باندې اصالة او مباشرة وى - او د اسم مصدر دلالت غير مباشرة

او تبعاوی، ځکه چه دده اولا دلالت په مصدر باندے وی، بیا ثانیا په حدث باندے وی -
(زیات تحقیق، خضری، او الصبان کښے اوګورئ!)

## مفعول له

**ضابطه ۲۹ :—** د مفعول له شناخت او علامت: دا هم مصدر روی، او د فعل علت او سبب وی -
آو دهغې په معنیٰ کښے لفظ د (د پاره، په وجه، په سبب) استعمالیږی،
او چه په (ولے، څه د پاره، په څه وجه سره) سوال اوکړے شی، نو دا په جواب کښے راځی: لکه: ولا تقتلوا اولادکم خشیة املاق، ضربته تادیبا، جئت رغبة فیك -

**فائده :—** مفعول مطلق او مفعول له دواړه مصدر دی مګر فرق دا دے، چه که د ماقبل فعل، یا شبه فعل، مصدر روی، نو مفعول مطلق دے، که نه وی، نو مفعول له دے، لکه: ضربت ضربا، ضربت تادیبا -

**ضابطه ۳۰ :—** د مفعول له د منصوب کیدو د پاره دوه شرطونه دی -
(۱) د مفعول له، او د فعل مُعَلَّل فاعِل به یو وی -
(۲) زمانه به ئے هم یوه وی،

که چرې د اشرطونه موجود نه شي، نو مفعول له به د..
(لام یا من) یا (باء) یا (في) په وجه سره مجرور وي،
لکه: من خشیة الله، فبظلم من الذین هادوا، ان
امرأة دخلت النار في هرة -

**ضابطه ۳۱ :** مفعول له متعدد نشي واقع کیدے،
البته عطف بیان او بدل نه مانع نه دے،
ولا تمسکوهن ضرارا لتعتدوا - په دے کښې (لتعتدوا)
دویم مفعول له نه دے، بلکه د ضرارا متعلق دے، او۔
هغې نه بدل دے -

**ضابطه ۳۲ :** حذف د مفعول له هم جائز دے،
لکه: یبین الله لکم ان تضلوا ای کراهة ضلالکم
(مغني اللبیب)

# مفعول فیه

**ضابطه ۳۳:** دد ے شناخت او علامت دا دے، چه
دا به همیشه ظرف وي، او دد ے په معنی کښې لفظ د ۔
(کښې) راځي، او (په څه کښې) په جواب د سوال کښې ...
واقع کیږي -

**ضابطه ۳۴ :** ظروفِ زمان ټول منصوب وي، او
(في) په کښې مُقَدَّر وي، لکه: سرت یوم الخمیس،
اتیت حین قعودك -

او ظرف زمان مُبهم هم منصوب وی لکه: جلست خلفك —
لیکن ظرف مکان محدود مجرور وی - او د (فی) ذکرکول ضروری
وی لکه: جلست فی المسجد -

ضابطه ۳۵: وقد ینوب عن مکان مصدر ÷ وذاك فی
ظرف الزمان یکثر ÷ لکه: اخرج من البیت شروق الشمس
واعود الیها غروبها، جلست قرب المدینة -

او دغه شان صفت لکه: صبرت طویلا من الدهر- او دغه
شان اسم عدد - او لفظ د کل او بعض کله چه ظرف زمان
یا ظرف مکان ته مضاف وی لکه: مشیت خمس ساعات، نمت
کل اللیل -

ضابطه ۳۶: ظروف زمان او مکان مرکب هم واقع کیږی
چه دهغی دواړه جزونه مبنی برفتحه وی لکه: صباح، مساء-
یوم یوم، صباح صباح، بین بین په معنی د کل صباح، کل
مساء الخ سره -

## مفعول معه

ضابطه ۳۷: د مفعول معه شناخت او علامت: دا همیشه
د واو نه پس چه هغه په معنی د مع سره وی راځی، دے وجے نهٔ
دے په معنی کښے لفظ د سره راځی لکه: استوی الماء والخشبة
یسبحن والطیر -

ضابطه ۳۸: د اسم بعد الواو خو صورتونه دی تنویر
کښے اوکورئ! -

## مفعول بهٖ

ضابطه ۳۹: د مفعول به شناخت او علامت دادے چه د-

هغې په ترجمه کښې لفظ د (لره یا ته) راځي او (چا لره) د سوال په جواب کښې واقع کیږي لکه: ضربت زیدا، انزل من السماء ماء -

## حال

**ضابطه ۴۰ :** دد ے شناخت او علامت دا دے چه دد ے په معنی کښې لفظ د (د ے حالت، یا حال دا چه، یا په دا سې حال کښې) راځي او د (کوم حالت) او (کوم حال کښې) په جواب کښې راځي: لکه: فادعوا الله مخلصین له الدین، وینقلب الی اهله مسرورا

**ضابطه ۴۱ :** حال همیشه نکره وی -

**سوال :** اشهد ان لا اله الا الله وحده، ادخل الاول فالاول کښې (وحده) معرفه حال واقع شوے دے، حال دا چه حال همیشه د پاره نکره وی، ؟

**جواب : ضابطه ۴۲ :** اصل په حال کښې نکره والے دے او معرفه واقع کیدل خلافِ اصل دے، لهذا کوم ځائے کښې چه حال معرفه واقع شوے وی، نو هغه به د نکرے په تاویل کښې کړ شوے شی- او ستاسو په پیش کړو مثالونو کښې (وحده) په تاویل د منفردا کښې دے او دویم په تاویل د مترتبین کښې دے

**ضابطه ۴۳ :** ذوالحال اکثر معرفه وی، او که چرے ذوالحال نکره وی نو حال په ذوالحال باندے مقدم کول واجب دی لکه فی الدار جالسا رجل -

**سوال :** مررت بامرأة جالسة، او الکلمة لفظ وضع لمعنی مفردا کښې (بامرأة) او (لمعنی) ذوالحال نکره واقع شوے دے، لیکن حال مقدم نه دے، مؤخر دے حالانکه تا سو او دیل چه

ذوالحال نکره وی نو تقدیم د حال واجب دے ۔

**جواب : ضابطه ۴۴ :** دا صورت مستثنی دے، چه که چرته ذوالحال نکره مجرور وی، نو بیا تقدیم د حال په ذوالحال واجب نه دے ۔

**ضابطه ۴۵ :** حال په منزله د خبر او د صفت دے، لکه څنګه چه خبر او صفت متعدد کیدے شی، د غه شان یو ذوالحال نه متعدد د احوال واقع کیدے شی، لکه ان الله یبشرك بیحیي مصدقا بکلمة من الله وسیدا و حصورا و نبیا من الصالحین ۔

**ضابطه ۴۶ :** حال همیشه د فاعل نه راځی یا د مفعول نه یعنے ذوالحال همیشه د پاره فاعل یا مفعول وی ۔

**سوال :** فاتبع ملة ابراهیم حنیفا۔ په دے مثال کښے دا۔ (حنیفا) حال دے د ابراهیم نه، حالانکه ابراهیم نه فاعل دے او نه مفعول دے بلکه مضاف الیه دے ۔

**جواب : ضابطه ۴۷ :** اصل خو دا دے، چه حال د فاعل نه یا د مفعول نه راځی، لیکن یو څو نورو ځیزونو نه هم حال واقع کیږی دهغے تفصیل په تنویر کښے اوګورئ ۔

**ضابطه ۴۸ :** حال مفرد هم راځی چه د هغے امثله تیر شوی دی، او جمله هم راځی، البته چه کله حال جمله واقع کیږی نو دهغے د پاره دوه شرطونه دی ۔ (۱) هغه به جمله خبریه وی. (۲) هغے کښے به رابط وی ۔

**سوال :-** جمله انشائیه هم حال واقع کیږی ؟ ۔

**جواب : ضابطه ۴۹ :** د جملے انشائیے حال واقع کیدل قلیل او خلافِ اصل دی، لهذا دداسے مثالونو تاویل به په

مقولا فی حقه سره کولے شی -

**سوال:** جمله حالیه دپاره رابط څه شے دے ؟

**جواب ضابطه ۵۰:** جمله حالیه دپاره دوه څیزونه رابط جوړیږی -(۱) واوُ (۲) ضمیر دجملے اسمیئے، او دجمله مضارعه منفیه، او ماضیه مثبته او منفیه ربط کله په واو سره کیږی او کله په ضمیر سره - او کله په دواړو سره لکه: لا تقربوا الصلوٰة وانتم سکاری - وما ارسلنا قبلك من المرسلین الا انهم لیاکلون الطعام، فاستقیما ولا تتبعان (بتخفیف نون فی قراءة) - فانقلبوا بنعمة من الله وفضل لم یمسسهم سوء، انی یکون لی غلام ولم یمسسنی بشر - انی یکون لی غلام وقد بلغنی الکبر، جاؤکم حصرت صدورهم -

**جمله مضارعه مثبته دپاره رابط فقط ضمیر دے -**

**سوال:** لم تؤذوننی وقد تعلمون انی رسول الله الیکم کښے څه جواب دے -؟

**جواب:** داسے صورت کښے به دے لره په تاویل دجملے اسمیئے سره کرځولے شی - او وقد تعلمون دے تاویل کیدے شی په وانتم تعلمون سره - ربط دپاره، شعر ؎

حال گر مثبت مضارع اودان با ضمیر
غیراین باواو ومضمر یا بہ ہریک بے خطا

**فائده:** دکوفیانو په نیز حال که چرے جمله ماضیه مثبته دی، نو قد راوړل ضروری نه دی، او دبصرینو په نیز ضروری دی - لیکن راجح مذهب دکوفیانو دے ځکه چه دقران مجید تائید دوی ته حاصل دے، لکه چه جاؤکم حصرت صدورهم -

کینې (حصرت) بغیر د قد نه حال دے -

**ضابطه ۵۱ :** واعلم ان الحال علی عشرة اقسام (۱)
حال منتقله: ماینتقل عن ذوی الحال غالبا نحوقوله تعالی:-
وادخلوا الباب سجدا - (۲) حال دائمه: مایکون دائما لذی
الحال نحو: کفی بالله شهیدا - اویکون کالدائم مثل: شهد
الله انه لااله الاهو والملئکة واولوا العلم قائما بالقسط
(۳) حال محققه: مایکون موجودا بالفعل - (۴) حال مقدره
مالایکون موجودا بالفعل فی زمان الاخبار بل یقدر وجوده فی
زمان اخر نحو: فادخلوها خالدین ای مقدرین لخلودکم -
(۵) حال مترادفه: ان یکون حالا بعد حال من ذی الحال
الواحد -
(۶) حال متداخله: ان یکون حالا من معمول الحال الاول
مثالهما: فخرج منها خائفا یترقب -
(۷) حال موطئه: مایکون جامدا موصوفا بصفة مشتقة
مثل: انا انزلناه قرانا عربیا - فتمثل لها بشرا سویا -
(۸) حال موکده للعامل: مثل فتبسم ضاحکا -
(۹) -حال مؤکده لذی الحال: مثل لامن من فی الارض کلهم
جمیعا -
(۱۰) حال موکده لمضمون الجملة: وهی الاتیة بعدجملة معقودة
من اسمین معرفتین جامدین وهی دالة علی وصف ثابت -
مستفاد من تلك الجملة - مثل: زید ابوك عطوفا -

**ضابطه ۵۲ :** حال حذف کول جائزدی لکه: ربنا تقبل
منا نه وراندے یقولان محذوف دے، چه هغه دماقبل نه حال

دے او د هغې د عامل حذف هم جائز دے، لکه: بلی قادرین دا حال دے چه د هغې عامل نجمعها مقدر دے -

# تمیز

**ضابطه ۵۳:** د دے علامت او شناخت دا دے چه دا دے په معنی کښې لفظ د (از روئے، په اعتبار، په حیثیت) سره راځی لکه: رایت احد عشر کوکبا - (د دے عمدہ بحث په تنویر کښې اوګورئ!)

**فائده ۵:** د مفاعیل خمسه او د حال او د تمیز شناخت: د دے څه وضاحت شوے دے، چه هغه کښې بعضې خبرے بالکل آسانے دی، او بعضې مشکلې خبرے دِ استاذان د طالبانو د ذهن مطابق — او لولوی، که چرے طالب علمان بالکل مبتدی وی، نو بیا دِ دے دا ضوابط هیڅکله نه لولوی - او د دے شناخت د پاره دَا ضابطے اولولوی! -

**ضابطه ۵۴:** د فعل فاعل نه پس را تلونکے اسم ته اوګوره چه هغه اسم مصدر دے که نه دے، که چرے مصدر وی نو بیا اوګوره! چه دا مصدر د ما قبل فعل مصدر دے که نه دے.

که چرے وی، نو مفعول مطلق به وی لکه ضربت ضربا -

او که چرے نه وی - نو بیا اوګوره چه په دے مصدر کښې معنی د علت شته او که نه، که چرے وی نو مفعول لهٔ به وی - لکه: ضربت تادیبا -

آو که چرے د علت معنی په کښې نه وی نو بیا اوګوره چه د غه اسم خواه که مصدر وی یا غیر مصدر، د ما قبل جمل ابهام ختموی

که نه - که چرے ابهام ختموی نو دایه تمییز وی - لکه، فالعدل خروجه عن صیغته الاصلیة تحقیقا او تقدیرا، واشتعل الرأس شیبا - او که چرے دغه مصدر رفع دابهام نه کوی نو بیا به هغه خواه که مصدر وی، یا مشتق وی، دما قبل نه حال جوړیږی لکه، والصلوة والسلام علی من ارسله هدی - ویوم ابعث حیا -

یا په اسان الفاظو کښے داسے او وایه! چه دغه به یا مبین دذات وی، یا به مُبین دوَصف وی، که چرے مبین دذات وی نو تمییز دے، او که چرے مبین دوصف وی، نو بیا حال دے - او که چرے مصدر نه وی، نو بیا به گوره چه مابعد والا اسم ظرف زمان یا ظرف مکان دے که نه دے ؟

که چرے وی نو مفعول فیه به وی، او که چرے نه وی، نو مفعول به به وی، لکه: ضربت زیدا -

## مستثنیٰ

**ضابطه ۵۵**: دده شناخت دادے، چه دا دادواتِ استثناء نه پس وی - او ادوات استثناء اته دی (۱) اِلاَّ (۲) حاشا (۳) لیس (۴) لا یکون (۵) خلا (۶) عدا (۷) غیر (۸) سوی -

## الضوابط للمجرورات

**ضابطه ۵۶**: دمجرور شناخت دادے، چه په دے باندے حرف جر داخلیږی، یا مضاف، لکه: مررت بزید، غلام زید - باقی تفصیل دمجرور بالحرف به دحروف جاره په بحث کښے راشی -

او د مجرور بالاضافة بحث به د اضافت په ضوابطو کښې راشي -

**ضابطه ۵۷ :** دَ معمول دوه قسمه دی (۱) معمول اصلی (۲) معمول فرعی -

مَعمول اصلی هغه دے چه هغه په دوه ویشت معمولا تو کښې وی، هغه دوه ویشت معمولات دی، اته مرفوعات او دولس منصوبات - او دوه مجرورات -

مَعمول فرعی هغه دے چه هغه دوه ویشت کښې نه وی بلکه په هغے کښې دیو تابع وی -

**ضابطه ۵۸ :** د توابعو اقسام سره د تعریف او وجه د حصر نه (د تنویر نه یاد کړئ!)

**ضابطه ۵۹ :** د متبوع او تابع اعراب او عامل یو وی - لکه: قام زید و عمرو -

**ضابطه ۶۰ :** تابع او متبوع کښې فاصله د غیر اجنبی جائز ده لکه: ذالك حشر علینا یسیر، سبحان الله عما یصفون ---- عالم الغیب والشهادة، افی الله شك فاطر السموات والارض، بلی وربی، لتاتینکم عالم الغیب، وابو بکر الصدیق اول الخلفاء لیکن فاصله بالاجنبی ناجائز ده -

**ضابطه ۶۱ :** تابع او متبوع کښې دیو مفرد کیدل ضروری ندی،

**ضابطه ۶۲ :** والتوابع فضلات یصح الاستغناء عنها -

**ضابطه ۶۳ :** صحة القطع فی ثلاثة منها النعت (الا کلمة کل) وعطف البیان، والبدل -

**ضابطه ۶۴ :** قدم النعت، فالبیان، فاکد ثم ابدل واختم بعطف الحروف

ضابطه ۶۵: که چرے تابع صفت وی، یا تاکید معنوی وی، یا عطف بیان وی، نو د متبوع اسم کیدل واجب او ضروری دی، لیکن د تاکید لفظی او د عطف نسق او د بدل متبوع دپاره اسم جوړیدل ضروری نه دی، کله په اسم وی او کله به غیر اسم وی۔

## صفت دپاره ضوابط

ضابطه ۶۶: د موصوف، صفت شناخت: کله ئے چه معنی کیږی نو لفظ د (دا سے، دا سے) او بامحاوره ترجمه کښے ئے لفظ د (کوم چه) راځی۔

《 العثماني كتابتون 》

ضابطه ۶۷: دوه اسمه چه معرفے وی یا دواړه نکرے وی، نو عموماً هغه موصوف، صفت وی، لکه: الرجل العالم، رجل عالم۔ په دے شرط چه حکم نه وی۔

ضابطه ۶۸: اسم اشاره نه پس چه معرف باللام وی، نو اکثر صفت، موصوف وی، لکه: الله والذی خلقکم۔

ضابطه ۶۹: کله چه نکرے نه پس فعل وی نو هغه صفت واقع کیدے شی لکه: الکلمة لفظ وضع لمعنی، واتقوا یوماً ترجعون فیه

《 العثماني كتابتون 》

ضابطه ۷۰: د صفت او موصوف ترمینځه فاصله په کان زائده سره هم جائزده، لکه: اتیت لزیارة صدیق کان مریض او دغه شان د معطوف او معطوف علیه ترمینځه هم جائزده۔

فائده: صفت، موصوف او مبتداء او خبر کښے " فرق ۱: لفظی دادے، چه مبتداء خبر کښے اکثر یو اسم معرفه او دویم نکره وی، او صفت، موصوف کښے دواړه اسم معرفے دی، یا دواړه نکرے

لکه: الله لطیف - من الله العزیز الحکیم، کتاب مبارك -

**فرق ۲:** معنوی فرق دادے چه دمبتداء او خبر ترجمه کښې

(دے، یا دی، یا یو) لفظ راځی - او د موصوف، صفت په ترجمه

کښې (داسې، هغسې او کوم) لفظ راځی -

**ضابطه ۷۱:** د صفاتو اته قسمونه دی، (۱) **صفت**

**مخصصه:** لکه دا قول د الله تعالی: فتحریر رقبة مومنة -

(۲) **صفت موضحه** نحو قوله تعالی: وهذا البلد الامین -

**فائده** فی عرف النحاة، التخصیص عبارة عن تقلیل الاشتراک

فی النکرة، والتوضیح عبارة عن رفع الاحتمال فی المعرفة -

(۳) **صفت کاشفه:** ما یکشف عن معنی الموصوف و هو -

تعریف له، نحو: الجسم الطویل العریض العمیق، هدی

للمتقین الذین یؤمنون الخ -

(۴) **صفت مادحه:** ما یکون لمجرد المدح نحو بسم الله الرحمن

الرحیم - (۵) **صفت ذامه:** ما یکون لمجرد الذم، نحو: اعوذ

بالله من الشیطان الرجیم -

(۶) **صفت** مؤکده: ما یکون لمجرد التاکید نحو: نفخة واحدة

(۷) **صفت مبینه:** - (للمقصود) - وما من دابة فی الارض

ولاطائر یطیر بجناحیه، دلته کښې صفت نه مراد جنسیت دے

نه فردیت -

(۸) **صفت** مفیده (للترحم) - نحو: اللهم انا عبدك المسکین

**ضابطه ۷۲:** کله کله موصوف حذف کولے شی لکه: ان

اعمل سابغات ای دروعا - او کله کله صفت هم حذف کولے

شی، لکه: وکان ورائهم ملك یاخذ کل سفینة غصبا - اے

لکه: الله لطیف - من الله العزیزالحکیم، کتاب مبارك -

**فرق ۲:** معنوی فرق دادے چه دمبتداء اوخبر ترجمه کښې (دے، یا دِی، یایو) لفظ راځي - اود موصوف، صفت په ترجمه کښې (داسې، هغسې اوکوم) لفظ راځي -

**ضابطه ۷۱ :** دصفاتو اته قسمونه دی، (۱) **صفت مخصّصه:** لکه دا قول دالله تعالی: فتحریر رقبة مومنة -

(۲) **صفت موضحه** نحوقوله تعالی: وهذاالبلدالامین -

**فائده** فی عرف النحاة، التخصیص عبارة عن تقلیل الاشترا ک فی النکرة، والتوضیح عبارة عن رفع الاحتمال فی المعرفة -

(۳) **صفت کاشفه :** ما یکشف عن معنی الموصوف د هو- تعریف له، نحو: الجسم الطویل العریض العمیق، هدی للمتقین الذین یؤمنون الخ -

(۴) **صفت مادحه :** مایکون لمجرد المدح نحو بسم الله الرحمن الرحیم - (۵) **صفت ذامه :** مایکون لمجرد الذم، نحو: اعوذ بالله من الشیطان الرجیم -

(۶) **صفت مؤکده:** مایکون لمجرد التاکید نحو: نفخة واحدة

(۷) **صفت مبینه :-** (للمقصود)- ومامن دابة فی الارض ولاطائریطیر بجناحیه، دلته کښې صفت نه مراد جنسیت دے نه فردیّت -

(۸) **صفت** مفیده(للترحم)-نحو: اللهم اناعبدك المسکین

**ضابطه ۷۲ :** کله کله موصوف حذف کولے شی لکه: ان اعمل سابغات ای دروعا - اوکله کله صفت هم حذف کولے شی، لکه: وکان دراءهم ملك یاخذکل سفینة غصبا - اے

سفینة صحیحة - زیات ضوابط تنویرنه ضرور یادکړئ!)

# تاکید دپاره ضوابط

**ضابطه ۷۳**: د تاکید دوه قسمونه دی (۱)- تاکید لفظی (۲) تاکید معنوی - د تاکید لفظی شناخت او علامت خو دا دے. چه یو لفظ به دوه ځله ذکرکیدے شی، لکه: ضرب ضرب زید قام زید زید - ان ان زیدا قائم -

او د تاکید معنوی شناخت دا دے چه اوګه الفاظو سره راځی. (۱) نفس (۲) عین (۳) کلا، کلتا (۴) کل (۵) اجمع، اکتع ابتع ابصع (۶) جمیع (۷) عامّة -

**ضابطه ۷۴**: تاکید لفظی د مفرد، جمله، اسم، فعل - او حرف ټولو نه راځی، لیکن تاکید معنوی صرف د اسم نه راځی -

**ضابطه ۷۵**: که چرے الفاظ د تاکید متعدد وی نو صرف دیو متبوع د پاره تاکید جوړ یدے شی لیکن تاکید دپاره تاکید هیڅکله نشی جوړیدے -

**ضابطه ۷۶**: د تاکید معنوی د الفاظونه لفظ د (نفس، عین) باء زائده سره مجرور لوستل هم جائزدی، لکه: جاء زید بنفسه، بعینه -

**ضابطه ۷۷**: تاکید معنوی کله غیر تاکید حسب عامل فاعل یا مفعول یا مبتدا او یا خبر واقع کیږی، لکه: رأیت ..... جمیعهم، عامتهم -

**ضابطه ۷۸**: د تاکید معنوی ټول الفاظ معرفه وی -- اصلیه خود اضافت الی الضمیر په وجه سره معرفه وی - او

مُلحقه دعلمیّت په وجه سره، ځکه چه دا علم جنس دی -

**ضابطه ۷۹ :** د تاکید معنوی الفاظ که اصلی وی که ملحق حرفِ عطف په کښې راوړل جائز نه دی -

## بدل دپاره ضوابط

**ضابطه ۸۰ :** د بدل شناخت: د دے اړه دو ترجمه کښې لفظ د یعنے راځی - د بدل د ټولو اقسامو پیژند ګلی :-

که چرے د بدل او مبدل منه مصداق یو وی، نو بدل الکل بدل مطابق به وی، لکه: رأیت زیدا اخاك۔

اوکه چرے بدل جزء وی، نو بدل بعض به وی - لکه: ضربت زیدا رأسه، - اوکه چرے د بدل او مبدل منه په مینځ کښې د جزء او کل نه علاوه بل څه تعلق وی، نو بیا به بدل اشتمال وی، لکه: سلب زید ثوبه، اوکه چرے د دوئ مینځ کښې مغایرت وی، نو بیا به بدل غلط وی لکه رایت رجلا حمارا۔

**ضابطه ۸۱ :** غالبه دا ده چه په بدل او مبدل منه کښې فاصله نه وی، هاں البته که چرے مجرور نه بدل وی، نو په اعادے د حرف جار سره فاصله جائز ده - لقد کان لکم فی رسول الله اسوة حسنة لمن کان، تکون عیدا لاولنا واخرنا -

**ضابطه ۸۲ :** بدل چونکه مقصود بالنسبت وی، د دے وجے نه د دے اقوی کیدل یا کم ازکم مساوی کیدل ضروری دی، د بدل او مبدل منه خلو صورتونه دی - (۱) دواړه معرفه وی، لکه: الی صراط العزیزالحمید، الله الذی -

(۲) دواړه نکرے وی، لکه: ان للمتقین مفازا حدائق واعنابا -

(۳) مبدل منه نکره وی او بدل معرفه وی، لکه: الی صراط مستقیم صراط الله - (۴) - مبدل منه معرفه وی او بدل نکره وی، اولنی درے صورتونه صحیح دی، او څلورم صورت غلط دے، ځکه چه بدل اکوم چه مقصود وی) ادنی کرځی، البته دد ے د صحت د پاره شرط دا دے، چه بدل د نکرے صفت واقع شی - لکه: بالناصیة، ناصیة کاذبة خاطئة -

**ضابطه ۸۳ :** یبدل کل من الاسم والفعل والجملة من مثله

**ضابطه ۸۴ :** حرف هیڅکله هم بدل نشی واقع کیدے، - لانه لایصلح للحکم -

## 《 العثماني كتابتون 》

## عطف بیان

**ضابطه ۸۵ :** دد ے شناخت او علامت؛ لفظی شناخت ئے دا دے چه دڅه اِسْمه وی، یَو علم وی، او بل کنیت وی، چه کوم رومستو وی هغه به عطفِ بیان وی، او چه کوم مخکښے وی هغه به متبوع او مبین وی،

معنوی شناخت ئے دا دے چه دد ے په معنی کښے لفظ دَ - (یعنی) راځی، لکه: اقسم بالله ابو حفص عمر، قال عبد الله بن مسعود رض -

**ضابطه ۸۶ :** کنیت او علم کښے چه کوم یو زیات مشهور وی، هغه به عطفِ بیان وی، ځکه چه دا موضح وی، او موضح د پاره ضروری ده، چه هغه دِ اوضح، اعرف او اشهر وی -

**فائده : عطف بیان او نعت کښے څو فرقونه دی:**

**فرق ۱:** صفت مُوضِح د ذات نه وی، اوعطفِ بیان مُوضِح او مخصص د ذات وی -

**فرق ۲:** صفتِ حقیقی په ضمیرد موصوف باندے مشتمل وی - اوعطفِ بیان داسے نه وی -

**فرق ۳:** صفت اکثرمُشتق وی، اوعطفِ بیَان اکثراسم جامد وی -

**وجہ اشتراک:** مابہ الاشتراك په دے کښے دوه څیزونه دی

(۱) دواړه موضِح اومخصص دی. (۲) دواړوکښے قطع جائزده -

**فائده:** عطفِ بیَان اوبَدل کښے یَو څو فرقونه دی -

**فرق ۱:** عطفِ بیان نه ضمیروی اونه تابع دضمیروی، اوبدل دغه شان وی، -

**فرق ۲:** عطفِ بیان نه فعل وی، او نه تابع د فعل وی - او بدل دغه شان وی -

**فرق ۳:** عطفِ بیَان نه جمله وی، او نه تابع د جُملے وی - او بدل دغه شان وی -

**فائده:** قال الرضی: انا الی الان لم یظهر لی فرق جلی بین بدل الکل من الکل وعطف البیان، بل ماأری عطف البیان — الا البدل، کما هوظاهرکلام سیبویه -

**ضابطه ۸۷:** د معطوف شناخت خوآسان دے چه داد - حروفِ عطف نه پس راځی، لیکن د معطوف علیه شناخت لږمُشکل دے، هغے دپاره داضابطه یاده ساتئ -

دمعطوف علیه شناخت: که چرے معطوف دمعطوف علیه په ځائے قائم کړے شی، او معنی صحیح شی، نوداعطف به صحیح وی، اوهم دابه معطوف علیه وی، اوکه چرے معنی فاسده شی، نوبیا

عطف صحیح نه دے، لکه: قام زید وعمرو -

**ضابطه ۸۸ :** دعطف الفعل علی الفعل دپاره اتحاد دزمانے شرط دے، نه اتحاد د نوع، مثلاً دفعل مجهد عطف په ماضی باندے او د ماضی په مجهد باندے دواړه جائز دی -

**ضابطه ۸۹ :** عطف دفعل په اسم باندے او د اسم په فعل باندے دواړه جائز دی، خو په دے شرط چه معنیً مشابهت ئے وی، لکه: فالمغیرات صبحا، فاثرن به نقعا، یخرج الحی من المیت ویخرج المیت من الحی -

**ضابطه ۹۰ :** که چرے د حرف عطف په ذریعه، د مبتداء کثر خبرونه، یا دفعل کثر مفاعیل وی، یا صله جات وی، او د معطوف او معطوف علیه تر مینځه فاصله زیاته وی، نو هلته کښے دوه قسمه عطف جائز دے - (۱)- عطف د مفرد په مفرد باندے (۲) عطف د جملے په جمله باندے - لکه: الباء للالصاق، ..... للاستعانة الخ -

**ضابطه ۹۱ :** د (اِمّا) عاطفه او د (اَمّا) مشرطیه د شناخت

**اوله طریقه :** که چرے په جواب کښے فاء وی، نو بیا به اما مشرطیه وی، او که چرے په جواب کښے فاء نه وی نو بیا به اما عاطفه وی، -

**دویمه طریقه :** که چرے دے نه پس یو بل اما وی، یا اَو وی نو اما عاطفه به وی، او که چرے نه وی، نو بیا به اما شرطیه وی، لکه: اما الذین سعدوا ففی الجنة، اما حقیقة واما مجازا - د دے نه مثق اوکړئ! -

**ضابطه ۹۲ :** اما همیشه تکرار سره وی، رومبئ بغیر د -

داونه، آو دویمه سره دواونه وی، نو پر دې (اما) ته به تردیدیه تفصیلیه وئیلې شي، آو دویمې ته به عاطفه وئیلې شي، او واو به زیاتي وی کوم چه د اما عاطفه د پاره شرط دے -

**ضابطه ۹۳ :** کله چه ضمیر مرفوع متصل باندے عطف کول او غوښتے شي، نو د معطوف علیه او د معطوف ترمینځه په څه څیز سره فاصله کول واجب دی، خواه که ضمیر منفصل سره وی، لکه: لقد کنتم انتم واباءکم فی ضلال مبین - یا بل څیز سره وی، لکه: جنات عدن یدخلونها ومن صلح الخ ؛ ما اشرکنا ولا اباءنا.

**ضابطه ۹۴ :** عطف الخبر علی الانشاء وبالعکس منعه البیانیون وجمهور النحاة وعند البعض یجوز استدلالا بقوله تعالی: وبشرالذین امنوا وعملوا الصالحات الخ فانها معطوفة علی جملة خبریة قبلها لکن الجمهور یؤولون جمیع ذلك بعطف القصة علی القصة، او بغیرذلك مما یناسب المقام -

**ضابطه ۹۵ :** کله معطوف علیه حذف کیږی، لکه: افلم تکن ایاتي تتلی علیکم د لته کښې معطوف علیه الم تاتکم محذوف دے - او کله معطوف هم حذف کیږی، لکه: فمن کان منکم مریضا او علی سفر- دے نه پس فافطر معطوف محذوف دے -

**ضابطه ۹۶ :** د دواو مختلفو عاملو په دوه معمولاتو باندے په یو حرف عطف سره عطف جائزدے یا نه ؟ - په دے کښې د نحاتو اختلاف دے، په نیزد امام سیبویه مطلقا ناجائزدے - او د امام فرّاء په نیز مطلقا جائزدے، په نیزد جمهورو فقط په یو صورت کښې جائزدے چه معمول مجرور مقدم وی، لکه: فی الدار زید والحجرة عمرو -

**ضابطه ۹۷ : حتی ، لکن ، بل اولا عاطفه کید و دپاره یو څو شرطونه دی ،**

حتی : دد ے دعطف دپاره څلور شرطونه دی - (۱)- دا به اسم وی (۲) دا به اسم ظاهر وی - (۳) معطوف به د معطوف علیه بعضے وی (۴) ما قبل نه به زیاتے وی ، لکه : مات الناس حتی الانبیاء ، یا به د ما قبل نه کمے وی ، : المومن یجزی بالحسنات حتی مثقال ذرة :

لکن : دد ے عاطفه گرځید و دپاره در ے شرطونه دی - (۱) — معطوف به مفرد وی - (۲) مقرون بالواو به نه وی (۳) نفی یا نهی نه پس به وی ، لکه : ما مررت برجل صالح لکن طالح -

بل : دد ے دپاره دوه شرطونه دی (۱) معطوف به مفرد وی (۲) دا اثبات یا امر یا نهی نه به بعد وی ، لکه : قام زید بل عمرو -

- دد ے عاطفه گرځید و دپاره څلور شرطونه دی (۱) معطوف که مفرد وی او که جمله وی خو محل د اعراب به وی (۲) اثبات یا امر یا دعاء یا تخصیص نه پس به وی - (۳) - او حرف عطف به متصل نه وی (۴) - معطوف او معطوف علیه مینځ کښے به عناد وی ، لکه : جاءنی رجل لا امرأة - (دا شرطونه ښه یاد کړئ !)

که چرے شرائط موجود وی نو دا حروف به عاطفه وی ، گنے نه به وی ، لهذا هر ځائے کښے دا حروفِ عطف گنړل غلط دی -

## علم دپاره ضوابط

**ضابطه ۹۸ :** علم ، تثنیه او جمع راوړلو سره نکره گرځی ، ددے وجه نه دے لره معرفه گرځولو دپاره الف لام راوړل ضروری دی لکه

الزیدان، الزیدون -

**ضابطه ۹۹ :** د یو سړي نوم جمع ذکرکول غواړې نو دوه صورتونه جائز دي (۱) جمع مذکر سالم به راوړلے شي، لکه: زید نه زیدون، (۲) جمع مکسره، لکه زید نه ازیاد، دغه شان د یوې ښځې د نوم جمع ذکرکول غواړې نو جمع مؤنث سالم یا جمع مکسره به راوړې، لکه: زینب نه زینبات، زیانب - اوکه چرې د علم مرکب اضافي جمع راوړل غواړې نو د رومبي جزء به پد لوړلے شي په صیغهٔ سالم سره یا په جمع تکسیر سره، نه بل جزء -

**ضابطه ۱۰۰ :** کله چه تثنیه یا جمع د چا د پاره علم اوګرځولے شي، نو په هغې باندے به د مفرد منصرف اعراب لوستلے شي بغیر د تنوین نه، په دے شرط چه اته حروفو نه کم وي، که چرے اته حروفو نه زیات وي، نو بیا به اعراب حکائي لوستلے شي -

اوکه چرے جمع مونثه سالمه چا د پاره علم اوګرځولے شي، نو په هغې باندے اعراب حکائي هم جائز دے، او د مفرد منصرف والا اعراب سره د تنوین نه، او بغیر د تنوین نه هم جائز دے -

**ضابطه ۱۰۱ :** کله چه علم نه پس صفت واقع شي نو بیا درې ترکیبونه جائز کیږي -

(۱) موصوف، صفت (۲) خبر محذوف المبتداء مرفوع، لکه: بسم الله الرحمن الرحیم، الرحمن الرحیم خبر دے، چه د دے مبتداء محذوف ده - (هو) دغه شان: والصلوة والسلام علی محمدٍ المصطفی (۳) فعل محذوف د پاره به مفعول به منصوب وي لکه، بسم الله الرحمن الرحیم ای اعنی -

**ضابطه ۱۰۲ :** صفات او القاب نه پس چه علم ذکر شي نو

دغه علم به بدل الکل وی یا به عطفِ بیان وی، لکه: شیخ القران غلام الله، قال الشیخ الامام عبد القاهر -

## ابن

ضابطه ۱۰۳: لفظ د ابن) که چرته په مینځ د دواو علَمو کښې وی، نو عام طور باندې د ړومبی علم دپاره صفت وی - او دویم علم طرف ته مضاف وی لکه: عبد الله بن عمر -

ضابطه ۱۰۴: د ابن همزه حذف کولو دپاره (په کتابت کښې) درې شرطونه دی، (۱) لفظ د ابن به د دواو علَمو په مینځ کښې وی (۲) د ړومبی علم دپاره به صفت وی (۳) د سطر په شروع کښې به نه وی -

## اسم منسوب

ضابطه ۱۰۵: اسم منسوب هغه اسم دے چه هغه دیو قوم یا مذهب یا ښار وغیره طرفته نسبت کولو دپاره د هغې په آخر کښې یائے مشدده راوړلے شی، لکه قریشی، حنفی، پاکستانی، سعودی -

ضابطه ۱۰۶: کوم ځائے کښې چه متعدد علمونو نه پس اسم منسوب راغلے وی، نو هلته کښې به درې صورتونو کښې یو صورت وی. (۱) د ړومبی علم صفت به وی - (۲) د دویم علم صفت به وی (۳) د دواړو صفت به وی -

ضابطه ۱۰۷: احقر په تنویر کښې لیکلی دی چه د اسم مفعول په شان اسم منسوب هم عمل کوی، یعنې نائب فاعل ته رفع ورکوی کله اسم ظاهر ته، لکه: کتب رجل ملتانی ابوه، او کله اسم ضمیر ته لکه: کتب رجل ملتانی -

ضابطه ۱۰۸ : کله (فَعَّالُ) صیغه په طور د اسم منسوب — واقع کیږی، لکه : نجار، لبان، عطار، وما ربك بظلا م — للعبید ای منسوب الی الظلم -

## موصول او صله د پاره ضوابط

ضابطه ۱۰۹ : د موصول دوه قسمه دی (۱) موصول اسمی (۲) موصول حرفی - موصول حرفی : پنځه حروف دی (۱) ان (۲) ان او مخففه من المثقلة (۳) ما (۴) کی (۵) لو -

ضابطه ۱۱۰ : د موصول اسمی دوه قسمه دی (۱) موصول اسمی خاص، دا اته الفاظ دی، الذی، اللذان الخ -(۲) موصول عام، یعنے مشترك ټولو معانیو د پاره، دا شپږ الفاظ دی (۱) ما (۲) من (۳) ال (۴) ذو (۵) ذا بثلاثة شروط (۶) ای -

ضابطه ۱۱۱ : هریو موصول د پاره (اسمی وی که حرفی) صله ضروری ده -

ضابطه ۱۱۲ : صله همیشه د پاره جمله خبریه وی یا شبه جمله وی، او شبه جمله نه مراد جار مجرور او ظرف او صفت صریحه دی -

ضابطه ۱۱۳ : صله همیشه د پاره د موصول نه مؤخره او — متصله وی -

ضابطه ۱۱۴ : د موصول اسمی په صله کښے همیشه د پاره ضمیر عائد وی، لیکن کله په ځائے د ضمیر باندے اسم ظاهر هم راځی، لکه : وانت الذی فی رحمة الله اطمع ای فی رحمته -

ضابطه ۱۱۵ : موصول خاص د پاره ضمیر عائد کښے مطابقت ضروری دے، او موصول عام د پاره دوه وجے جائز دی (۱) د لفظ

رعایت کول (۲) د معنی رعایت کول، لکه: ومن الناس من یقول امنا بالله و بالیوم الاخر و ما هم بمؤمنین -

**ضابطه ۱۱۶**: موصول اسمی د (ال) نه سیوا حذف کول هم جائز دی، لکه: "قولوا امنا بالذی انزل الینا و انزل الیکم" اصل کښې "الذی انزل الیکم" دے، - د حسان رضی الله عنه شعر دے ؎

فمن یهجو رسول الله منکم ÷ و یمدحه و ینصره سواء ÷

لیکن د موصول حرفی حذف بغیر دان نه نا جائز دے -

**ضابطه ۱۱۷**: حذف د صلے جائز دے، لکه: من رأیته په جواب کښې او وئیلے شی، زید الذی -

**ضابطه ۱۱۸**: حذف د رابط هم جائز دے، لکه: فاقض ما انت قاض -

**فائده ۵**: موصولات اسمیه او موصولات حرفیه کښې څو فرقونه دی - **فرق ۱**:- د موصولات اسمیه سوا د (ای) نه اعراب محلی دی، او موصولات حرفی د پاره اعراب بالکل نشته -

**فرق ۲**: د موصول اسمی صله همیشه د پاره په ضمیر عائد باندې مشتمله وی، او د موصول حرفی صله نه وی -

**فرق ۳**: د موصول اسمی حذف هم جائز دے، په خلاف د موصول حرفی نه -

**فرق ۴**: د موصول اسمی صله جمله طلبیه هیڅکله نشی کیدے په خلاف د موصول حرفی نه -

**فرق ۵** موصول حرفی خپله صله په تاویل د مصدر سره کرځوی ځکه چه حروف مصدریه دی، په خلاف د موصول اسمی نه -

**فائده ۵**: اسماءِ موصوله په ترکیب کښې فاعل، مفعول، مبتداء

خبر، موصوف او صفت وغیره جوړیږی، لیکن اعراب ئے محلاً وی ۔
**فائده :** الجملة الخبرية مالا يتوقف تحقق مضمونها على النطق بها والجملة الانشائية هي تتوقف عليها فلذا لا تقع صلة للموصول۔

# معرب او مبنی دپاره ضوابط

**ضابطه ۱۱۹ :** د معرب او مبنی شناخت : د مطالعے په وخت کښے اوګوره چه کلمه حرف دے که فعل دے که اسم دے، که چرے حرف وی، نو هغه به مبنی وی، ځکه چه ټول حروف مبنی دی، او که چرے فعل وی، نو اوګوره چه ماضی ده که امر حاضر معلوم دے، که مضارع ده، که چرے ماضی وه (معلوم وی که مجهول) یا امر حاضر معلوم وُو، نو مبنی به وی، ځکه چه دا دواړه همیشه دپاره مبنی وی، او که چرے مضارع وی نو بیا اوګوره چه نون تاکید ثقیله او خفیفه یا نون دَ جمع مؤنث ورسره شته او که نشته، که چرے وی نو مبنی به وی، او که چرے نه وی نو معرب به وی ۔

**یادداشت:** جحد، نفی، امر او نهی ټول په مضارع کښے داخل دی (ځکه چه دا ټول د مضارع نه جوړیږی) که چرے اسم وی نو بیا اوګوره چه دا اسم غیر متمکن دا ته اقسامونه دے او که نه دے ؟ که چرے وی نو مبنی دے او که چرے نه وی نو معرب دے ۔

**الحاصل** د معرب فقط دوه قسمه دی (۱) اسم متمکن کله چه ترکیب کښے واقع وی (۲) فعل مضارع چه کله هغه د نون تاکید او نون جمع مؤنث نه خالی وی ۔

او د مبنی شپږ قسمونه دی (۱) ټول حروف (۲) فعل ماضی (۳) فعل امر حاضر معلوم، دے درے واړه ته مبنی الاصل وئیلے شی (۴) اسم غیر

متمکن (۵) اسم متمکن چه کله ترکیب کښے واقع نه وی (۶) فعل مُضارع چه هغې کښے نون تاکید یا نون مؤنث وی -

**ضابطه ۱۲۰ :** حروف او فعل امر حاضر او فعل ماضی په دے شرط چه هغې باندے اداة د شرطِ جازم داخل نه وی، او اسماء افعال او اسماء اصوات، الف لام اسم موصوف، او اوګه جملے او حروف مقطعات کوم چه د سورتونو په ابتداء کښے راځی، دا ټول به همیشه د پاره د اعراب نه خالی وی یعنے دوئ د پاره، اعراب محلا هم نه وی - او د فعل مضارع او د اسم غیر متمکن باقی اقسام او جملے نهه اقسام د پاره اعراب محلا دے، مبنی د پاره اعراب محلا وی، او فعل ماضی چه هغې باندے اداة د شرط جازم وی، نو د اعراب محلی نه پکښے فقط جزم محلا وی -

**ضابطه ۱۲۱ :** الغالب علی الاسماء المبنیة انها تضاف وبعضها یضاف مثل حیث، وکم خبریه، واذ، واذا -

**ضابطه ۱۲۲ :** کل اسم یجب اضافته بجملة وجب بناءه -

**ضابطه ۱۲۳ :** د معرب تابع هم معرب وی او د مبنی تابع هم معرب وی، لکه د منادی په تابع کښے: یا ایها الرجل - لا حول ولا قوة الا بالله -

## اعراب د پاره ضوابط

**ضابطه ۱۲۴ :** د اعراب درے قسمونه دی (۱) اعراب لفظی (۲) اعراب تقدیری، دا دواړه د معرب سره خاص دی (۳) اعراب محلی، دا مبنی پورے خاص دے -

**ضابطه ۱۲۵ :** اعراب حکائی: کله چه یو لفظ باندے من حیث اللفظ حکم نکول مقصود وی نو د عامل مطابق اعراب لو ستل

هم جائزدی، او په دغه مسموعه حالت کښې لوستل هم جائزدی -
چه هغې ته اعراب ځکائي و ئیلے شي -

**ضابطه ۱۲۶ :** اعراب علی سبیل التوهم : یو معدوم څیز
باندے د موجود حکم لګول او د هغې اعراب لوستل چه هغې د پاره دلیل
کثرتِ استعمال وی، لکه: مازید قائمٍ په دے کښې اګرچه قائمٍ -
باندے (باء) جاره موجود نه ده، معدوم ده، لیکن مونږ دا موجود
فرض کوو په قائمٍ به جر لوستلے شی - او دغه شان دا شعر دے ؎

بدالی انی لست مدرك ما مضی
ولا سابق شیئا اذا کان جائیا

په دے کښې (سابق) باندے باء متحقق الوجود فرض کولے شی
او جر پرے لوستلے شی، چه هغې د پاره دلیل دا دے، چه د منفی په
خبر باندے دخول د باء کثیر دے، د یته اعراب علی سبیل التوهم
وائی -

**ضابطه ۱۲۷ :** جرجوار: د رو مبنی اسم مجرور سره د جوار او
اتصال په وجه سره که په دویم اسم باندے هم جر او لوستلے شی
نو هغې ته "جرجوار" وائی، په دے شرط چه معنوی اشتباه نه وی
لکه: وامسحوا برءوسکم وارجلکم -

**ضابطه ۱۲۸ :** که چرے کلمه ثنائی وی چه د هغې بل حرف،
حرف علت وی او اعراب ورکول مقصود وی، نو دویم حرف به مشدد
کړے شی او اعراب به او لوستلے شی، لکه (لو) حدیث کښې راځی :-
ایاکم واللو فان اللو تفتح عمل الشیطان، او که چرے اخر کښې
الف وی نو دویم الف به همزے سره بدلولے شی، لکه: ماء، لا -



# جملے د پارہ ضوابط

: جمله کښې څلور تقسیمونه دی -

**تقسیم اول** : د جملې څلور قسمه دی، (۱) جمله اسمیه (۲) جمله فعلیه (۳) جمله ظرفیه (۴) جمله شرطیه -

**جمله اسمیه** : د دے علامت او شناخت: په دواو اجزاء مقصوده ؤ کښې رومبي جزء به اسم وی، او دویم جُزء اسم وی که فعل، لکه: زید قائمٌ، زید قام -

**جمله فعلیه** : د دے علامت او شناخت: په دواو اجزاء مقصوده ؤ کښې به رومبے جُزء فعل دی، لکه: قام زید -

**جمله ظرفیه** : د دے علامت او شناخت: د دوه مقصودی اجزاؤ کښې رومبے جزء به ظرف وی، لکه: لا فیها غول، به داء -

**جمله شرطیه** : د دے علامت او شناخت: چه په شروع کښې به ئے دادوات شرطیه نه یو اداة وی، لکه: من جاء بالحسنة فله عشر امثالها -

**تقسیم ثانی** :

د جملې دوه قسمونه دی (۱) صُغریٰ، (۲) کُبریٰ -

**جمله صغریٰ** : هغه جمله ده، کومه چه خبر واقع کیږی، لکه: زید ابوه قائمٌ -

**جمله کبریٰ** : هغه جمله ده چه هغې کښې خبر جمله وی، لکه: لکنا هو الله ربی - اصل کښې لکن ان هو الله ربی وُو، همزه احتیاطًا حذف کړے شوه، او په نیز د بعضو باندے قیاسًا حذف کړے شوے ده - زیات تفصیل مغنی اللبیب کښې اوګورئ! - په دے جمله کښې

درے مبتدا ءِ کانے دی، الله ربي جمله صُغری ده، او مکمل جمله کُبرٰی ده - ——— **تقسیم ثالث** : د جملے دوه قسمونه دی۔

——— (۱) خبر یه (۲) انشائیه -

د جملے خبریے او د جملے انشائیے علامت او شناخت: که چرے دیارلس اقسامو کښے یو قسم وی، نو جمله انشائیه به دی او که چرے نه وی، نو جمله خبریه به وی، او هغه دیارلس اقسام دا دی - (۱) (۲) نهی (۳) استفهام (۴) تمنی (۵) ترجی (۶) عقود (۷) نداء (۸) عرض (۹) قسم (۱۰) تعجب (۱۱) تحضیض (۱۲) دعاء (۱۳) مدح او ذم۔

**تقسیم رابع** : د جملے دوه قسمونه دی۔ (۱) الجملة التی لا محل لها من الاعراب۔ (۲) الجملة التی لها محل من الاعراب

## هغه جملے چه هغے له پاره اعراب محلی نشته هغه اووه دی:

(۱) ابتدائیه، مستانفه (۲) جُمله معترضه (۳) جمله صله (۴) جمله جواب قسم (۵) جمله مفسره (۶) د جمله شرط غیر جازم جواب، یا د شرط جازم جواب چه هغه مقترن بالفاء او اذا مفاجاتیه نه وی، (۷) په دے ذکر شوو جملو کښے په یو دے عطف وی۔

## ذ دے تفصیل: قسم اوّل جمله ابتدائیه

د مستانفه دوه قسمه دی (۱) افتتاحیه، یعنے چه هغے نه کلام شروع وی، لکه الحمد لله رب العالمین (۲) منقطعه، یعنے مخکښنی کلام نه منقطع وی، لکه: ولا یحزنك قولهم، ان العزة لله جمیعا۔ دا (ان) والا جمله مقوله نه دی، بلکه دا مستانفه ده۔

**فائده** : په نیز د بیانینو جمله مستانفه هغه ده، چه هغه

دسوالِ مقدر جواب وی، لکه: فقالوا سلاما، سوال مقدر داده (ما قال ابراهیم) چه د هغې جواب ئې ورکړو (قال سلام) -

**دویم قسم جمله معترضه:** جمله معترضه څو ځایونو کښې واقع کیږی، په مینځ د فعل فاعل کښې، فعل مفعول، مبتداء خبر- شرط جزاء، موصول صله، موصوف صفت، د قسم او جواب قسم په مینځ کښې واقع کیږی -

**دریم قسم جمله مفسره مبینه:**

دا هغه ده، چه دیو څیز حقیقت واضحه کړی، چه دهغې دری[3] قسمه دی (۱) بغیر د حرف تفسیرنه، لکه: هل ادلکم علی تجارة .... تؤمنون بالله - (۲) ای حرف تفسیر سره، لکه: ان زیدا قائم ای حققت قیام زید - (۳) (ان) حرف تفسیر سره، لکه: فاوحینا الیه ان اصنع الفلك -

**تنبیه** ما اضمر عامله علی شریطة التفسیر، په نیز د نحاتو دا د جمله مفسره نه نه دے -

**څلورم قسم جمله صله:** خواه که د موصول اسمی صله وی اوکه د موصول حرف، لکه: الذین یؤمنون بالغیب -

**پنځم قسم** جواب قسم: لکه: والعصر ان الانسان لفی خسر- لینبذن فی الحطمة - واذ اخذ الله میثاق .... لتبیننه ځکه چه میثاق هم قسم دے -

**شپږم قسم د جواب شرط غیر جازم جواب:**

لکه: لو- لولا، لما، کیف، یا د شرط جازم جواب په دے شرط چه مقترن بالفاء اواذا مفاجاتیه نه وی، دا شرطئې وړے نکولے دے-

**ضابطه ۱۲۹:** کله چه د شرط جازم جواب مقترن بالفاء او

اذامفاجاتیه نه وی، نو فعل به مجزوم وی، جمله به نه وی، که چرے مقترن وی، نو جمله به مجزومه وی، -

**فائده :** قال الدمامینی: واقره الشمنی والحق ان جملة الجواب لامحل لها مطلقا اذ کل جملة لاتقع موقع المفرد لامحل لها خلافا لصاحب المغنی وصاحب الکشاف -

**اووم قسم :** چه په دغه مذکوره جملوکښے په یو بانده عطف وی، لکه: قام زید ولم یقم عمرو -

## هغه جملے چه هغے د پاره اعراب محلی شته هغه نهه دی:

(۱) هغه جمله چه خبر وی (۲) چه حال وی (۳) هغه چه مفعول به وی (۴) هغه چه مضاف الیه وی (۵) هغه چه مسند الیه وی (۶) جمله مستثنا ته وی۔ (۷) د شرط جازم جواب چه هغه مقترن بالفاً یا اذامفاجاتیه وی (۸) جمله د مفرد تابع وی (۹) په ذغه ذکر شوو جملوکښے دیوے جملے تابع وی -

**تفصیل : قسمِ اول :** چه جمله خبر وی، لکه: هوالله احد،

**قسمِ ثانی :** چه جمله حال وی: لکه: اتامرون الناس بالبر.... وانتم تتلون الکتب -

**فائده :** جمله حالیه او جمله معترضه کښے یو څو فرقونه دی -

**فرق ۱ :** جمله معترضه انشائیه هم وی په خلاف دجمله حالیه نه -

**فرق ۲ :** دجملے معترضے په شروع کښے حرف استقبال او حرفِ شرط او حرفِ ناصب راتلے شی، په خلاف د جمله حالیه نه

**فرق ۳ :** جمله معترضه مقترنه بالفاء هم وی، په خلاف دجمله حالیه نه -

**دریم قسم جمله مفعول به:** چه دهغې درې قسمه دي.
(۱) مقوله، لکه، قال انی عبد الله - (۲)- د باب د علمت مفعول ثانی، او د باب د اعلمت مفعول ثالث (۳) جمله مفعول به چه د هغې عامل معلق وي، لکه، و لتعلمن اینا اشد عذابا، فلینظر ایها ازکی طعاما، لیبلوکم ایکم احسن عملا -

**فائده:** تعلیق په هر فعل قلبی کښې یا د هغې په اسبابو کښې کیږي لکه تیر شوي مثالونو کښې (نظر) او (بلاء)- د اسباب علم نه دي چه هغه فعل قلبي دے -

**څلورم قسم مضاف الیه:**

**ضابطه ۱۳۰:** اته اسماء داسے دي چه د هغې جملے طرف ته اضافت کیږي، (۱) اسماءِ زمان، لکه: والسلام علی یوم ولدت (۲) حیث مکانیه (۳) لدن- (۴)- ریث مصدر- (۵) بینما (۶) ذو په معنی د صاحب سره (۷) قول (۸) قائل -

**پنځم قسم:** مسند الیه: لکه، سواءٌ علیهم ءَ انذرتهم.
**شپږم قسم:** جُمله مُستثناة، لکه: الا من تولی وکفر-
**اووم قسم:** د شرط جازم جواب: چه هغه مقترن بالفاء یا اذا مفاجاتیه وي، -

**اتم قسم:** چه جُمله د مُفرد تابع وي: یعني د مفرد صفت یا بدل یا عطف وي، لکه: واتقوا یوما ترجعون فیه الی الله - و- اسروا النجوی الذین ظلموا - زید منطلق وابوه حاضر -

**نهم قسم:** چه په مذکوره جملو کښې دیو تابع وي، یا عطف بالحرف وي، یا بدل وي، بدل د پاره شرط دا دے، چه ثانی په مقصد کښې اوفی وي، لکه: واتقوا الذی امدکم بما تعلمون، امدکم بانعام وبنین-

# شرط د پاره ضوابط

ضابطه ۱۳۱ : ادواتِ شرط د دواو جملو تقاضا کوی، دیو نوم شرط دے، او د بل نوم جزاء ده -

ضابطه ۱۳۲ : شرط همیشه د پاره جمله فعلیه وی -

ضابطه ۱۳۳ : شرط فعل طلبیّه او فعل جامد نشی کیدے -

ضابطه ۱۳۴ : د جملے شرطیئے په شروع کښے حرف (قد) نشی راتلے

ضابطه ۱۳۵ : جمله شرطیه حال هم نشی واقع کیدے -

ضابطه ۱۳۶ : اما شرطیه اکثر په دواو څیزونو باندے داخلیږی رومبے څیز قائم مقام د شرط وی، او دویم څیز قائم مقام د جزاء وی - په دے باندے فاء هم داخلیږی، هغے ته جواب د امّا وائی - او عموماً د اما او د فاء په مینځ کښے مبتداء یا مفعول یا ظرف فاصل وی -

# جزاء د پاره ضوابط

ضابطه ۱۳۷ : جزاء د پاره دا ضروری نه ده، چه کښے جمله فعلیه د وی، بلکه جمله اسمیه هم جزاء واقع کیدے شی، لکه دا - شعر دے ے فان تتقوا شرا فمثلکموا اتقی ÷
وان تفعلوا خیرا فمثلکموا فعل ÷

ضابطه ۱۳۸ : جزاء معنی جدیده فائده کوی، چه هغه د - شرط نه نه معلومیږی، : کقوله علیه السلام: لکل امری ما نوی فمن کانت هجرته الی الله ورسوله فهجرته الی الله ورسوله - ای فهجرته مقبولة -

ضابطه ۱۳۹ : کله دوه ادواتِ شرط جمع شی او جزائے یوه وی

هلته کښې یوه جزاء محذوفه وی، لکه: فاما ان کان من اصحاب الیمین فسلم لك من اصحاب الیمین - فسلم دادا ما جزاء ده -

**ضابطہ ۱۴۰** : دجزاء حذف کید ودپاره شرط دادے، چه د شرط نه مخکښې په یوه جمله وی، چه هغه به په جزاء دلالت کوی لکه: ولقد همت به وهم بها لولا ان رای برهان ربه -

بعضے نحویان دے ته جزاء وائی، او بعضے دے ته عوض وائی، اوهم دا ضابطه ده دجواب قسم حذف کید ودپاره -

**نوټ** : په څومره صُور تونوکښې په شرط او جزاء باندے جزم وی، او په څومره صورتونوکښې په جزاء باندے دخول د فاء واجب دے یا ممتنع دے یا جائزدے ؟ (شرح تنویر کښې اوګورئ)

**ضابطہ ۱۴۱** : که چرے شرط او قسم جمع شی نوجواب به د مقدّم وی، او د مؤخّر جواب به محذوف وی، لکه: ان قمت والله لا قومن، والله ان قمت لا قومن، قل لئن اجتمعت الانس والجن علی ان یأتوا بمثل هذا القران لا یأتون بمثله - په دے کښې لا یأتون بمثله جواب قسم دے -

**ضابطہ ۱۴۲** : دشرط جازم جواب نه پس که چرے فعل مضارع مقرون بالواو یا بالفاء (او بعضو ثم هم ذکر کړے دے) وی، نو دا په درے وجو هوسره لوستل جائزدی (۱) مرفوع لوستل (بناء بر جمله مستانفه) (۲) منصوب لوستل د(ان) مقدر په وجه سره (۳) مجزوم لوستل، لکه: وان تبدوا ما فی انفسکم او تخفوه یحاسبکم به الله فیغفر، په دے (یغفر) باندے دے درے وجو هوسره اعراب لوستل جائزدی -

**ضابطہ ۱۴۳** : که چرے په مینځ دشرط او جزاء کښې واقع وی-

نو دوه وجې لوستل جائز دی، (۱) جزم (وهوالاکثر) (۲) نصب لیکن رفع ممتنع ده - ځکه چه مستانفه نشي جوړیدے، لکه: ان تستقم و تجتهد اکرمك -

**ضابطه ۱۴۴** : که چرې فعل مضارع بغیر د حرف عطف نه - شرط او جزاء نه پس وی لیکن جواب مقصود نه دی، نو بیا دوه وجې جائز دی (۱) جزم (بنابر بدل) (۲) رفع (بناء برجمله حالیه) لکه: ومن یفعل ذلك یلق اثاما یضاعف له العذاب، په دې کښې (یضاعف) باندې رفع او جزم دواړه جائز دی -

**ضابطه ۱۴۵**: اووه څیزونو نه پس فعل مُضارع که چرې بغیر د فاء نه وی نو مجزوم وی، آو که چرې فاء سره وی نو منصوب وی، ځکه چه هلته کښې اَنْ مقدر وی، او هغه اووه څیزونه دا دی - (۱) امر (۲) نهی (۳) استفهام (۴) تمنی (۵) عرض (۶) دُعاء (۷) جحد -

**ضابطه ۱۴۶** : د امر، نهی وغیره په جواب کښې د فعل مُضارع د مجزوم کید و دوه شرطونه دی - (۱) د اِنْ شرطیه دخول به صحیح وی (۲) د فعل به خپل ماقبل نه مقصود کیدل صحیح وی،

احترازی مثال: لا تشرك بالله تدخل النار - لا تمنن تستکثر -

**ضابطه ۱۴۷**: څنګه چه د امر نهی وغیره په جواب کښې - مُضارع مجزوم وی، نو دغه شان د اسماءِ افعالو په جواب کښې - هم مجزوم وی، لکه: حسبك الحدیث ینم الناس - صه عن القبیح تؤلف -

## اِن او لو وصلیه د پاره ضوابط

**فائده** : دان اولو وصلیّه استعمال هغه ځائے کیږی کوم ځائے چه د حکم یعنې د (جزاء) ثبوت د شرط مذکور نقیض دپاره په طریقهٔ اولیٰ سره وی، یعنې د حکم تعلق شرط مذکوره سره هم وی او دهغې نقیض سره هم وی، لیکن نقیض سره ئے تعلق زیات وی لکه: اطلبوا العلم ولو بالصین، بلغوا عنی ولو اٰیة -

په دے کښې شرط یو ایت دے، دهغې نقیض دوه څلور ایتونه دی، او س د تبلیغ تعلق د واړو سره دے، لیکن دوه څلور آیتونو سره ئے تعلق زیات دے -

مطلب ئے دا شو، چه که چرے تا سو ته یو ایت معلوم وی، نو دهغې تبلیغ اوکړئ، او که چرے زیات آیتونه معلوم وی - نو بیا خو په طریق اولیٰ سره ئے تبلیغ فرض دے -

**الحاصل** دان اولو وصلیّه استعمال به هغه ځائے کښې صحیح وی، کوم ځائے چه د شرط مذکور دپاره ثبوت د حکم بعید وی او دهغهٔ نقیض دپاره اقرب او انسب وی، لهذا اطع امیرا ولو فاسقا وئیل صحیح دی، لیکن دا وئیل چه اطع امیرا ولو مطیعا غلط دی -

**ضابطه ۱۴۸** : "ان" او "لو" چه واو سره وی او دهغې دپاره جزاء محذوف وی، او ماقبل جمله په جزاء دلالت کوی - نو هغې ته — وصلیه وئیلے شی -

**ضابطه ۱۴۹** : لو وصلیه نه پس اکثر جار مجرور وی، په داسے ځائے کښې کان فعل ناقص یا دهغې مشتقات محذوف کنړلے شی، او هغه ظرف دهغې دپاره خبر وی، لکه: ولو علی انفسکم -

**ضابطه ۱۵۰** : دان اولو وصلیّه فائده دا وی، چه نقیض شرط دپاره په د وقوع حکم کښې تاکید او مبالغه پیدا کوی -

ضابطه ۱۵۱ : د دے علامت او شناخت : عام طور سره په کتابونو کښے دهغې لاندے ئے لفظ دوصلیّه لیکلے وی، او د دویمه علامه ئے داده چه د دے په اُردو معنی کښے لفظ د (اگرچه) راځی۔

ضابطه ۱۵۲ : "ان" او "لو" سره چه کوم واؤ وی، په هغې کښے د نحویانو د رے مذهبونه دی۔ (۱)۔ په نیز د جمهور و واؤ حالیّه دے، شرط سره د جزاء نه ماقبل خپل نه حال گرځی۔
(۲) عند الجزری : واؤ عاطفه دے، شرط مذکور عطف وی په خپل نقیض مقدّر باندے۔ (۳) عند الرّضی: جزاء مقدم او شرط مؤخر، د شرط او جزاء په مینځ کښے واؤ اعتراضیه دے۔

# قسم د پاره ضوابط

ضابطه ۱۵۲ : عمومًا خلور حروف قسم د پاره راځی۔ واؤ، باء، تاء، لام، کوم ځائے چه قسم وی، هلته کښے څلور څیزونه وی (۱) مُقسِمُ (۲) مقسم بِهٖ (۳) حرف قسم (۴) جواب قسم، لکه: والعصر ان الانسان لفی خسر۔

ضابطه ۱۵۳ : حروف جاره قسمیّه همیشه د پاره اُقسِمُ فعل محذوف سره متعلق وی۔

ضابطه ۱۵۴ : جواب قسم ضروری دے او حذف کولو شرط تیر شوے دے۔

ضابطه ۱۵۵ : د جواب قسم مؤکّد کیدل ضروری دی۔

ضابطه ۱۵۶ : لام او لَقَدْ نه مخکښے قَسم مقدّر وی۔

ضابطه ۱۵۷ : جمله قَسَمیّه همیشه د پاره انشائیه وی۔ او جواب قسم جمله خبریه وی۔

# دغیرمنصرف ضوابط

**ضابطه ۱۵۸ :** دغیرمنصرف علامت او شناخت: دغیر منصرف فقط دوه قسمه دی، باقی ټول منصرف دی (۱)۔نکره (۲) عَلَم۔

**اول قسم علم :** که چرے په دغه شپږ واسمونو کښې یو اسم وي نو غیرمنصرف په وی، ګنے هغه علم به منصرف وی، هغه شپږ اسماء دادی (۱) مونث لفظي یا معنوی، لکه: طلحة، زینب (۲) الف نون زائد تان، لکه: عثمان، سلمان، عمران۔ (۳) وزنِ فعل وی، لکه: احمد، یشکر، (۴) مرکب منع صرف، لکه بعلبك، (۵)۔ عجمه به وی، لکه: ابراهیم (۶) عدل به وی، لکه: عمر، زفر۔

**دویم قسم نکره :** که چرے نکره وی نو بیا اوګوره چه دغه شپږ اسماؤ کښے یو اسم دے او که نه دے، که چرے وی نو غیرمنصرف دے او که چرے نه وی نو منصرف دے، هغه شپږ اسماء دادی:۔
(۱) افعل صفتي وی، لکه: احمر (۲) فعلان صفتی وی، لکه: سکران (۳) اسم عدد چه د فُعَال یا مفعل په وزن سره وی لکه: ثلاث و مثلث (۴) الف مقصوره تانیثي وی لکه: حبلی (۵) الف ممدوده زائده وی، لکه: حمراء (۶)۔جمع اقصی: لکه مساجد، مصابیح، دے نه علاوه باقی ټول منصرف دی۔

**ضابطه ۱۵۹ :** هرکله چه دغیر منصرف مشابهت دفعل سره دے، دے وجے نه غیرمنصرف باندے کسره او تنوین نه راځی۔

**ضابطه ۱۶۰ :** دضرورتِ شعری او مناسبت په وجه سره کسره او تنوین راځی۔ (زیات تفصیل کاشفه کښے اوګورئ)

**ضابطه ۱۶۱ :** کله غیر منصرف سره د مناسبت په وجه سره منصرف غیر منصرف کرځولے شي - (تنویرا وګورئ!)

**ضابطه ۱۶۲ :** کل مصغر لم یذهب تصغیره احد سببه فهو غیر منصرف والا فمنصرف -

**ضابطه ۱۶۴ :** په غیر منصرف چه الف لام داخل شي یا ئے اضافت اُوشي نو بیا پرے کسره داخیدے شي -

دا نبیاء کرامو آو ملائکو او د قبیلو او د ځایونو په نومونو کښے کوم کوم منصرف دی، او کوم کوم غیر منصرف دی (تنویر نه ئے یاد کړئ) -

## اسم اشاره

**ضابطه ۱۶۵ :** د اسم اشاره ترکیب: (۱) اسم اشارے نه پس چه نکره وی، نو اسم اشاره به مبتداء وی، او ما بعد به ئے خبر وی، لکه: هذا ذکر مبارك - (۲) که چرے عَلَم نه پس وی یا مضاف وی بیا هم مبتداء، خبر به وی، لکه: هذا زید، هذا غلام زید -
(۳) او که چرے ما بعد د اسم اشارے نه معرف باللام، یا اسمِ موصول وی، نو عُمومًا څلور ترکیبونه کیدے شي - (۱) موصوف صفت، لکه ذلك الکتاب، هم دا ترکیب زیات چلیږی (۲) عطفِ بیان (۳) مبدل منه او بدل، (۴) مبتداء، خبر - دا قلیل الاستعمال ده لکه: اولئك الذین اشتروا - تلك الجنة التی - (زیات بحث تنویر کښے اوګورئ) -

## تذکیر او تانیث د پاره ضوابط

**ضابطه ۱۶۶ :** د مذکر او مؤنث شناخت: که چرے د څلور علاماتِ تانیث نه یوه علامه په کښے وی، نو هغه کلمه به مؤنث

او که چیرته نه وی، نو بیا به مذکر وی -

**ضابطه ۱۶۷:** د "ټولو ملکو نو او ښارو نو نومونه مؤنث سماعي دي (۲) د بدن ټول اعضاء سواد آنګي (رخسار) او د ویښتو ځاځي نه مؤنث سماعي دي (۳) د شرابو ټول اسماء مؤنث سماعي دي (۴) د د و زخ ټول نومونه مؤنث سماعي دي (۵) د هوا ګانو ټول نومونه مؤنث سماعي دي - (۶) د ژنانو ټول نومونه او د ښځو د مخصوص صفاتو الفاظ مثلاً - طالق، حائض وغیره مؤنث سماعي دي -

**ضابطه ۱۶۸:** د مؤنث سماعي هغه الفاظ چه هغه واجب التانیث دي، داد ي: عین، اذن، نفس، دار، دلو، سن، کف، جهنم، جحیم، سعیر، نار، لظی، عقرب، ارض، است، عضد - ید، عصا، فردوس، ریح، خمر، فلک، غول، ثعلب، فارس، - ورک، قوس، ارنب، بیر، ذهب، تبر، ینبوع، درع، قدم، کبد عقب، فرس، افعی، سقر، حرب، کاس، ثدی، عنکبوت، موسی، یمین، شمال، اصبع، رجل، سراویل، ضبع، ساق، شمس -

**ضابطه ۱۶۹:** د مؤنث سماعي هغه الفاظ چه هغه جائز التانیث دي - سماء، سلم، قدر، مسک - حال، بیت، طریق - ثری - عنق - لسان، سبیل، ضحی - صلاح، قفا، رحم - سرطان - سکینه -

## ضمائرو د پاره ضوابط

**ضابطه ۱۷۰:** د ضمائرو تعداد او اقسام څومره دي او څومره پکار دي - (تنویر نه یاد کړئ) -

**ضابطه ۱۷۱:** کوم ضمائر مستتر کیدے شي، صرف ضمیر مرفوع متصل کیدے شي، او هغه هم په ټولو صیغو کښې نه دے -

بلکه په دواړو صیغو د ماضي کښې چه یو واحد مذکر غائب او بل یو واحده مؤنثه غائبه، او پنځه د مضارع کښې چه هغه کښې د وړاندې مذکوره دي، او یو واحد مذکر مخاطب، واحد متکلم او جمع متکلم یا سائل آخري درې قسمونه واجب الاستتار دي، نور جائز الاستتار دي، او د صفت په تمامو صیغو کښې مُستتر کیدے شي -

**ضابطه ۱۷۳:** ضمیر مرفوع متّصل ترکیب کښې صرف فاعل یا نائب فاعل جوړیدے شي، او ضمیر مرفوع منفصل مرفوعات نور کښې هرشے جوړیدے شي -

**ضابطه ۱۷۴:** ضمیر منصوب متّصل د فعل سره مفعول، او حروف مشبّه بالفعل سره اسم جوړیږي -

**ضابطه ۱۷۵:** ضمیر مجرور همیشه د پاره مُتّصل دي، مُنفصل نه وي، دده ترکیب واضح دے چه حرف جار سره مجرور او مضاف سره مجرور مضاف الیه وي -

**ضابطه ۱۷۶:** ضمیر بارز د حروف جاره ؤنه داحروف داخلیدے شي - باء، لام، مِن، فی، علی، الی، رُبَّ، عدا -

**ضابطه ۱۷۷:** ضمیر غائب د پاره مرجع ضروري ده، د مرجع درې قسمونه دي (د تنویر بحث د ضابرو کښې اوګورئ) -

**ضابطه ۱۷۸:** د ضمیر شان، ضمیر قِصّه او د ضمیر فصل تعریف یاد کړئ: (کاشفه شرح کافیه)-

**ضابطه ۱۷۹:** ضمیر منصوب متّصل او مجرور متّصل واحد مذکر غائب که چرې کسرے نه پس واقع وي نو کسرهٔ اشباعي (ولاړ زیر) به لوستلے شي، لکه: بِهٖ، اِرْمِهٖ، که چرې یائ ساکنه نه پس وي نو کسره به لوستلے شي، لکه: علیهِ، او که چرې حرف

صحیح ساکن یا واو ساکن یا الف نه پس وی، نو بیا به مضموم
لوستلے شی، لکه: من ثمرة، انزلناه، خذوه، عنه، مسلموه
او که چرے ضمے یا فتحے نه پس وی، نو بیا به ضمه اشباعی
لوستلے شی، لکه: یضربه، لَهٗ۔
هغه هاءِ کومه چه جمع مذکر غائب او غائبات او تثنیه مذکر
کښے ده، که چرے یائ ساکنه یا کسرے نه پس واقع وی، نو بیا به
هغے به کسره وی، لکه: علیهم، بهم۔ دے نه علاوه به مضموم
وی، لکه: لهم۔
**فائده:** انسانیه، ویخلد فیه مهانا دا قلیل دے۔

## اِضافت دپاره ضوابط

**ضابطه ۱۸۰:** مضاف همیشه اسم وی، چه د هغے اعراب د
عامل مطابق وی۔
**ضابطه ۱۸۱:** مضاف د الف لام نه خالی وی، لیکن یو څو
صُورتونو کښے: (۱) ان توجد فی المتضافین معًا، لکه: الولدان
هما الرحیما القلب (۲) ان توجد فی المضاف دون المضاف الیه۔ و
یکون المضاف الی اسم مبدوءٍ بها نحو: اعاون المؤسسی نهضة
البلاد۔(۳)۔فی المضاف فقط ویکون المضاف الی ضمیر یعود الی
لفظ مشتمل علیها، نحو: المجد انتم المدرکو قیمته۔ (۴)۔
فی المضاف فقط بشرط ان المضاف مثنی او جمع المذکر السالم:
نحو: انتما الصانعا معروف۔
**ضابطه ۱۸۲:** اضافت دعَلَم جائز نه دے او نه پرے دُخول
دالف لام تعریفی صحیح کیږی، ځکه چه دعَلَمیت په وجه سره هغه

دوړاندے نه معرفه ده۔

**ضابطه ۱۸۳:** مشهوره قاعده ده چه اعلامو باندے الف لام نه داخلیږی، لیکن یاد ساتل پکاردی، چه کوم اعلام دوصفیّت نه عَلَمیّت طرفته مُنتقل شوے وی، په هغې باندے دُخول دالف لام جائزدے، لکه: الحسن، الحسین، الحارث ـــ العباس وغیره۔

**ضابطه ۱۸۴:** مضاف مضاف الیه کښې فاصله جائزنه ده۔ لیکن څو ځایونوکښې جائزده، والتفصیل فی المطوّلات ۔

**ضابطه ۱۸۵:** مضاف الیه اودهغه معمول په مضاف باندے مقدّم کول جائزنه دی۔

**ضابطه ۱۸۶:** وجوب استفادة (کل و بعض) مـــن المضاف الیه الظرفیّة۔

**ضابطه ۱۸۷:** یجوزحذف التاء من المضاف کقوله تعالی:۔ واوحینا الیهم فعل الخیرات واقام الصلوٰة ۔

**ضابطه ۱۸۸:** اذاتوالت الاضافات، انتقل التعریف، و التخصیص من المضاف الیه الاخیرالذی قبله، فالذی قبله، حتے یصل الی المضاف الاول، نحو: هذا بیت والد محمود۔ (صبّان، مفصل) (نوټ ضوابط د تنویرنه یادکړئ!)

# مشترکه ضوابط

**ضابطه ۱۸۹:** قول: دامادہ د خپلو متعلقاتو سره قول، او مابعد جُملَه مقوله کیږی، او مقوله په حکم د مفعول به کښې وی۔

**ضابطه ۱۹۰:** کله کله یاء د ضمیر متکلم مجرور تَخفِیفاً حذف

کولے شي، او کله کله یاء مبني بر سکون باندے فتحه هم لوستلے شي، لکه: ولي دین ای دینی -

**ضابطه ۱۹۱ :** که چرے یك حرف کلمه فعل وي نو ترکیب کښے به د هغے د ذات نه تعبیر کیدے شي، لکه: قِ، او که چرے یك حرف کلمه اسم یا حرف وي، نو اسم خاص یا اسم مشترك سره به ترے تعبیر کیږي، لکه: اء نذرت،

او که چرے دوه یا د دواوُ نه زیا تو حروفو والا کلمه وي، خواه که اسم وي، یا فعل وي یا حرف وي، د دے تعبیر د خپل ذات نه کول جائز دي، او اسم مشترك نه هم جائز دے، لکه: اِنَّ، مَا وغیره

**ضابطه ۱۹۲ :** د ماضي مخاطب او د متکلّم صیغے په وخت د ترکیب کښے به د هغے نه په فعل فاعل سره تعبیر کولے شي، لکه: ضربت، ضربنا، سیوا د افعال ناقصه نه -

**ضابطه ۱۹۳ :** اسم اشاره نه پس که چرے معرّف باللّام وي نو اکثر د هغے صفت وي، لکه: ذلك الکتاب، د نکرے صفت جُمله خبر یه کیدے شي، لکه: قام رجل ابوه عالم -

**ضابطه ۱۹۴ :** د نکرے نه پس جمله خبر یه صفت او د معرفے نه پس حال واقع کیدے شي -

**ضابطه ۱۹۵ :** جمله اگر چه په حکم د نکرے کښے وي، لیکن کله چه د هغے مضمون معرفه کښے بند وي، نو هغه د معرفے صفت کیدے شي، لکه: لا اله الا هو- دا د الله صفت دے -

**ضابطه ۱۹۶ :** مضمرات نه موصوف واقع کیږي، او نه صفت، او اعلام موصوف جوړیدے شي، صفت نه جوړیږي - او اَیٌّ صفت جوړیږي او موصوف نه جوړیږي -

**ضابطه ۱۹۷:** کوم ځائے کښې چه دوه اسمه معرفې وی، یا نکرے وی نو اکثر موصوف به وی، که چرے رومبے معرفه وی، او دویم نکره وی، نو بیا به مبتداء، خبروی، که چرے رومبے نکره وی، او دویم معرفه وی، نو بیا به مضاف، مضاف الیه وی۔

**ضابطه ۱۹۸:** صِفت د جمع مکسّرے جمع راځی، که چرے جماعةً سره ئے تاویل اوکړے شی، نو دهغے صفت واحدهٔ مؤنثه هم جائز ده، لکه: النساء المسلمات، النساء المسلمة۔

**ضابطه ۱۹۹:** موصول سره د صِلے نه جزء د جُملے جوړیدے شی، لیکن جمله نه جوړیږی۔

**ضابطه ۲۰۰:** قرآن مجید کښې، اَفَمَنْ او اَوَمَنْ په شان الفاظ چه کوم ځائے کښې وی، نو مَنْ موصوله به معطوف او واو به حرفِ عاطفه وی، او د همزهٔ استفهام د فاء او واو نه بـه مخکښې معطوف محذوف وی۔

**ضابطه ۲۰۱:** عَلَى المَفعُولِيّة، عَلَى الفاعليّة، على التّميِيز، دا قسم الفاظ دا بناءً پورے متعلق وی، او جار مجرور مفعول لَهُ وی، یا مفعولِ مُطلق جوړیږی، بَنَيْنَا د پاره۔

**ضابطه ۲۰۲:** د مُستثنیٰ مفرّغ اعراب موافق د عامل وی، او د مُستثنیٰ منه اعراب هم موافق د عامل وی، او دا به د دے قسمه الفاظو نه مستثنیٰ کړځولے شی: شیئٌ من الاشیاء، فرد من الافراد، شخص من الاشخاص، وقت من الاوقات، اسم من الاسماء، فعل من الافعال، حرف من الحروف۔

**ضابطه ۲۰۳:** الف لام موصول نه اسم فاعل او اسم مفعول معرفه نه جوړیږی، بلکه نکره وی۔

نو عموما هغه مضاف، مضاف الیه جوړیږی، لکه: رب العالمین رأس خالد و غیره - (۲) -که چرے د اسم نه بعد ضمیر راشی، نو هغه هم مضاف، مضاف الیه جوړیدلے شی، لکه: من ربهم -- ایمانکم، -- عنده، دغه شان که چرے دوه اسمه بغیرد الف لام نه وی او دوی نه پس ضمیر راشی، نو هغه هم مضاف او مضاف الیه جوړیږی، لکه: بعد موتها، قد نری تقلب وجهك -

دغه شان که چرے درے اسمونه بغیرد الف لام نه وی - او ضمیر ترینه روستو راشی، یا چار اسم وی بیا ضمیر راشی، نو دا تول مضاف، مضاف الیه جوړیږی، لکه: و مسح ربع رأسه -- حسن وجه ابن عمه - (۳) که چرے دوه اسمونه بغیرد الف لام نه وی، یا درے وی یا څلور روی، بیا د وی نه پس الف لام والا اسم راشی، نو دا مضاف، مضاف الیه جوړیږی، لکه: باب صلوة الجنازة، نور وجه رسول الله صلی الله علیه وسلم - و سبب نفس وجوب صلوة الظهر -

د مضاف او مضاف الیه ار دو ترجمه کښے (کا - کے، کی - نا - نے - نی - را - رے، ری) الفاظ راځی -

یاد ساتل پکار دی چه د مضاف مضاف الیه په ترجمه کښے - د مضاف الیه ترجمه مخکښے راځی او د مضاف روستو راځی: مثالونه:- جدی: ځما نیکه - خالتی: ځما خاله - اجدادی: زما نیکونه - غلام زید: د زید غلام - کتاب سعید: د سعید کتاب - ثیاب خالد د خالد جامے، لبست ثوبی: ما خپلے جامے واغوستے - غسلت قمیصی ما خپل قمیص اووینځلو - اخذت دراهمی: ما خپلے روپئ واخستے

**ضابطه ۲۱۸:** پس د فعل نه جرلوستل حرام دی - باق -

رأیت مسلمات کښې مسلمات باندې جرنه دې نصب دې -

**ضابطه ۲۱۹ :** واحد مذکر غائب او واحده مؤنثه غائبه نه علاوه، هیڅ یو فعل نه پس رفع لوستل جائز نه دی -

# دَ مائة عامل تشریح

عامل اندر نحو صد باشد چنین فرموده اند
شیخ عبد القاهر جرجانی پیر هدی

**دَ عامل تعریف** —— ما اوجب کون اخر الکلمة علی وجه مخصوص من رفع او نصب او جر او جزم

**شیخ-:** د لفظِ شیخ صر فی تحقیق: عند البعض د دې اصل شیوخ ؤو، په قانون د قویل سره شیّخ شو- بیا په قانون د رخی سره شیخ شو- عند البعض دا په خپل اصل دې، شیخ بروزن فعل دې دا راجح دې، ځکه چه د دې جمع اشیاخ ده- او ضابطه داده چه د اجوف نه د فَعْل جمع د افعال په وزن سره راځي - دا رنګ د دې تصغیر شییخ دې، نه شویخ - کله د دې جمع شیخان او شیوخ هم راځي -

**معنوی تحقیق -:-** د لفظ شیخ درې معنے دی (۱) لغوی - (۲) عرفی (۳) شرعی - (۱) لغوی معنی ئې داده چه د پنځوس کالو عُمر نه زیات شی، هغه ته شیخ وائي (۲) من کان له مهارة کاملة فی فن من الفنون ولو کان شابا (۳) شیخ شرعی: من یحی السنة ویمیت البدعة ویکون افعاله واقواله حجة للناس - او دلته کښې مراد د شیخ نه شیخ عرفی دې، ځکه چه جرجانی صاحب متعصب معتزلی دې - په نیز د شیخ باندې عوامل تقل دی، لیکن

دا مسلک د جمهور و نه دے۔

معنوی از وے دو باشند جمله دیگر لفظیند ÷ باز لفظی شد سماعی و قیاسی اے فتا

**تقسیم عامل :** د عامل دوه قسمه دی (۱) لفظی (۲) معنوی

**عامل لفظی :** ما یعرف بالقلب و یتلفظ باللسان -

**عامل معنوی:** ما یعرف بالقلب و لیس للسان فیه حظ -

د عامل لفظی دوه قسمه دی - (۱) سماعی (۲) قیاسی -

**عامل سماعی :** ما یمکن ضبطه بالجزئیات -

**عامل قیاسی :** مالا یمکن ضبطه الا بمفهوم کلی -

شد نو دیک زان سماعی هفت دیگر مر قیاس

آن سماعی سیزده نوع است بے رو دیا

عامل لفظی سماعی یو نوی ۹۱ دی، او قیاسی اوه ۷ دی، او معنوی دوه ۲ دی - ټول سل ۱۰۰ شول - عوامل سماعی په دیارلس ۱۳ نوعو کښے بیانیږی۔

## النوع الاوّل

نوع اول هفده حرفِ جر بود میدان یقین

کان درین یک بیت آمد جمله بے چون و چرا

باو و تا کاف و لام و او منذ مذ خلا

رب حاشا من عدا فی عن علا حتے الیٰ

داد عوامل سماعی اولنئ نوع ده چه دے کښے ټول اوولس ۱۷ عوامل دی، چه دهغے نوم حروفِ جاره دے، او ددے عمل داد ے، چه دا په اسم باندے داخلیږی، او هغے ته جر ورکوی -

**فائده :** حرف الجر علی ثلثة اقسام، اصلی وزائد وشبیه بالزائد، فالاصلی : ما یحتاج الی متعلق، وهو لا یستغنی عنه معنی ولا اعرابا نحو : کتبت بالقلم - والزائد : ما یستغنی عنه اعرابا ولا

يحتاج الى متعلق، ولا يستغنى عنه معنى لانه انما جئ به لتوكيد مضمون الكلام، نحو: و ما جاءنا من احد، و نحو: وليس سعيد بمسافر۔ والشبيه بالزائد: مالا يمكن الاستغناء عنه لفظا ولامعنى، غيرانه لا يحتاج الى متعلق وهو خمسة احرف: رب وخلا وعدا و حاشا ولعل -

## ظرف

**ضوابط:** پنځه ضوابط د تنویرد حروفِ جاره بحث نه یاد کړئ دارنګې د جار او د جر تعریف هم دهغه ځائ نه یاد کړئ -

**ضابطه ۲۲۰ :** هر جار مجرور ته ظرف وائي او ظرف يو کمزورے څيز دے، هغه ته د مد د ضرورت وی، دکوم څيز نه چه دے مدد اخلی هغه ته متعلَّق وائي، او بڅپله ظرف ته متعلِّق وائي، هرظرف دپاره مُتَعلَّق ضروری دے (زيات تفصيل تنوير کښے اوګورئ) -

**ضابطه ۲۲۱ :** دظرف دوه قسمونه دی. ۱ ظرف مستقر ۲ ظرف لغو -

**ظرف مستقر:** هغه دے چه دهغه متعلَّق محذوف وی۔ اکثر ځايونو کښے څلور افعالو کښے يو فعل محذوف وی هغے ته افعال عامّه وائي، هغه دا دی (۱) ثبوت (۲) وجود (۳) کون (۴) حصول - کله چرته بل فعل خاص هم محذوف وی - مثلا: اقسم، استحق، انلبس - دے ته افعال خاصه وائي -

**ظرف لغو :** هغه دے، چه دهغے متعلق مذکور وی - دبعضے نحويانو په نيز ظرف مستقر هغه دے چه دهغه متعلق محذوف وی او افعال عامّه ؤ نه وی - او ظرف لغو هغه دے چه دهغے متعلّق د- افعال خاصه ؤ نه وی، خواه محذوف وی او که مذکور وی -

**ضابطه ۲۲۲:** د ظرف متعلق به محذوف وی یا به مذکور وی، که چرې مذکور وی، نو د هغې د تلاش کولو کوشش اوکړئ ـ او طریقه د تلاش دا ده چه که چرې حرف جر د حروفِ جاره قسمیّه نه وُو، نو د هغې متعلق به اقسم فعل محذوف وی، او که چرې قسمیّه نه وی نو بیا به ما قبل کښې غور اوکړئ، که چرې د یَو متعلّق د محذوف کیدو څه قرینه وی، نو صرف په محذوف تسلیم کوُو، او که چرې څه قرینه نۀ وی، نو افعالِ عامّه کښې به یو فعل محذوف تسلیم کوُو ـ

**ضابطه ۲۲۳:** ظرف لغو په ترکیب کښې هیڅ نه واقع کیږی نه مسند الیه او نه مسند، او ظرف مستقر سره د خپل متعلّق نه کله په ترکیب کښې مُسند الیه واقع کیږی او کله مُسند ـ

**ضابطه ۲۲۴:** ظرف مستقر به د دواو حالاتو نه خالی نه وی یا به د معرفې نه پس واقع کیږی، یا به نکرې نه پس، که چرې معرفې نه پس واقع وی، نو په ترکیب کښې د څلورو څیزونو نه یو څیز به واقع کیږی ـ (۱) که چرې معرفه مبتداء وی نو دا به ئې خبر شی ـ لکه: الحمد لله ـ (۲) او که چرې موصُول وی، نو دا به ئې صِلَه واقع کیږی ـ لکه: والذین من قبلکم ـ (۳) او که چرې معرفه موصُوف وی، نو دا به ئې صفت وی، لکه: بحل ـ مشکلات الکافیة للعلامة، للعلامة جار مجرور صفت د الکافیة دے ـ (۴) که چرې د دغه درې صورتونو کښې هیڅ یو صُورت نه وی، نو بیا به ظرف مستقر د معرفې نه حال داقع کیږی ـ لکه: فاللفظیة منها، اللفظیة ذوالحال منها جار مجرور ظرف مستقر د هغې نه حال دے، که چرې ظرف مستقر د نکرې نه پس واقع

کیږي، نو همیشه به د نکرې د پاره صفت جوړیږي، لکه: علی معنی فی نفسها - فی نفسها جار مجرور ظرف مستقر متعلق په کائن پورې دا صفت د معنی شو، چه دا نکره ده -

**ضابطه ۲۲۵** : که چرې د دواو جار مجرورو یو متعلق محذوف وي، نو اولنی جار مجرور ته به ظرف مستقر او دویم جار مجرور ته به ظرف لغو ویلې شي، ځکه چه کله د اولنی جار مجرور د پاره متعلق ښکاره کړې شو، نو ګویا که هغه مذکور شو -

**ضابطه ۲۲۶** : که چرې لفظِ وَاحِدُ او شَيْئٌ نه پس مِنْ راشي، نو دا به سره د خپل متعلّق نه همیشه د پاره صفت وي - او که چرې الواحد، الشيئ نه پس وي، نو بیا به حال وي -

**ضابطه ۲۲۷** : حروف جاره کښې چه په یو حرف باندې مشتمل وي، نو هغه نه به تعبیر کیدې شي په معرّف باللّام سره، لکه: الباء، واللام - او کوم حروفِ جاره چه په دوو یا دوو نه زیاتو حروفو باندې مشتمل وي، نو هغه بغیر د الف لام نه مُستعملیږي -

**ضابطه ۲۲۸** : حروفِ تهجّي او حروف جاره مذکّر او مؤنث دواړو طریقو سره استعمالیږي، په دې وجه سره هغې ته ضمیر د مذکر او مؤنث دواړه راجع کیږي، لیکن اغلب تانیث دې -

**ضابطه ۲۲۹** : جار مجرور چه کوم فعل یا شبه فعل سره متعلّق وي، نو هغه د دې صِلّه وي، په دې وجه سره په بعضِ کتابونو کښې په دې باندې او د دې په متعلّق باندې د ص نشان وي -

**ضابطه ۲۳۰** : مِنْ بَیَانِیه پس د معرفې نه حال واقع کیږي او پس د نکرې نه صفت واقع کیږي، او اکثر اوقات مِنْ بَیَانیه

د مَا او مَهمَا نه پس واقع کيږي، لکه: مايفتح الله للناس من رحمة فلا ممسك لها - ما ننسخ من اية ، مهما تاتنابه من اية

**ضابطه ۲۳۱:** کوم ځائې کښې چه د جملې يو جزء ظرف وي او بل اسم وي، نو که چرې اسم مقدّم وي، او ظرف مؤخر وي، لکه: زيد في الدار، نو اسم به مبتداء وي، او ظرف به ئې خبر وي،

او که چرې ظرف مقدّم وي او اسم مؤخر وي، لکه: به داء نو په نيزد بصريانو به هم هغه ترکيب وي، او په نيزد کوفيانو ظرف مستقر د پاره به اسم مؤخّر فاعل وي او دا جمله به ظرفيه وي

**فائده:** د حروفِ جاره څو قسمونه دي -

**قسم اول:** اوۀ حروفِ جاره په اسم ظاهر او ضمير دواړو کښې عمل کوي، هغه دا دي: مِنْ، اِلیٰ، عَنْ، عَلیٰ، فِيْ، اَلْبَاءُ، اَللَّامُ -

**مثال د في:** وفيها ماتشتهيه الانفس -

**مثال د من او الی:** فمطرنا من الجمعة الی الجمعة الحديث مما خطيئا تهم اغرقوا - هل من خالق غيرالله

**مثال د عن:** لترکبن طبقا عن طبق -

**مثال د علیٰ:** وانه لذو مغفرة للناس علی ظلمهم -

شعر اذا رضيت علیّ کرام عشيرتي ÷

فلا زال غضبانا علیّ لئامها ÷

**مثال د باء:** کفی بالله شهيدا - فبما نقضهم ميثاقهم لعناهم بحسبك درهم - بعت هذا بهذا -

**مثال د لام:** لله لا يؤخر الاجل -

لدوا للموت وابنوا للخراب ÷

فکلکم يصير الی الذهاب ÷

**دویم قسم :** دا حروفِ جاره اسم ظاهر سره مختص دی چه دهغې څلور قسمونه دی (۱) هغه حرف جر چه هغه اسم ظاهر متعین پورے خاص نه وی، هغه درے دی، حتیٰ، کاف، او واو۔
مثال د کاف، ان زید کریم - مثال د واو : اشتریته بوالله درهم
(۲) هغه حروفِ جاره چه هغه زمانے پورے خاص وی، هغه دوه دی، مذ او منذ، لکه : ما رأیته مذ ان الله خلقه یعنی مذ زمان ان الله خلقه -
(۳) هغه حروف جاره کوم چه نکرے پورے خاص دی، هغه رُبَّ دے، لکه : رب کاسیة فی الدنیا عاریة یوم القیمة -
(۴) هغه حروف جاره چه کوم لفظِ الله سره او رَبِّ سره خاص دی، کله چه رب مضاف وی کعبے طرف ته یا متکلّم طرف ته، هغه تاء دے - تالله لافعلن کذا، ترب الکعبة، تربی، وندر تالرحمن وتحیاتك -
**ضابطه ۲۳۲ :** بعضے حروفِ جاره هغه دی، چه هغه حرفیة او اسمیت کښے مُشترك دی - او هغه پنځه دی - (۱) کاف (۲) عن (۳) علی (۴) مذ (۵) منذ -
(۱) د کاف اسمیت علی المذهب الاصح شعر پورے مختص دے - لکه : یضحکن عن کالبرد المنهم - او عند البعض کلام نثر کښے هم شته - لکه : محمد کالاسد ای مثل الاسد - علامه زمخشری کهیئة الطیر فانفخ فیه کښے کافِ اسمیه وائی - (۲) عن (۳) علی : کله چه د دوی باندے مِنْ داخل شی، لکه : "مِنْ عَنْ یَمِیْنِیْ" - په دے کښے عَنْ اسم دے، په معنیٰ د جهت سره - مِنْ عَلَیْهِ په دے کښے عَلیٰ اسم دے، په معنیٰ د فَوْقَ سره او په دے باندے عَلیٰ هم

داخلیږی - (۴) مذ (۵) منذ، داپه دواو ځایونوکښې اسم وی
اول ځای : چه په اسم مرفوع باندے داخل وی، لکه: ما رأیته مذ یومان او منذ یوم الجمعة - په دا سے وخت کښې دادواړه مبتداء وی او ما بعد ئے خبر وی - اوعند البعض برعکس دے - او عند البعض مابعد ظرف به فاعل وی -
دویم ځای : کله چه داپه جمله داخل شی، جمله اسمیه وی که جمله فعلیه، په دے صورت کښې به بالاتفاق اسم ظرف وی۔
فائده : بعضے حروف فعلیت او حرفیت کښې مشترك دی، او هغه درے دی، (۱) خلا (۲) عدا (۳) حاشا - چه ددے تفصیل راروان دے، او دِے نه علاوه باقی حروف حرفیت سره مختص دی -
ضابطه ۲۳۳ : حروفِ جارهٔ مِنْ، عَنْ، بَاء نه پس مازائده راځی، چه هغه عمل کوی، -
ضابطه ۲۳۴ : رب او کافِ مِثلیه نه پس هم مازائده راځی، او اکثر کافه وی، کله کله عمل کوی ؎

ربما ضربة بسیف صیقل ÷
کما الناس مجزوم علیه وجازم ÷

ضابطه ۲۳۵ : مدخول د رب به نکره موصوفه وی یا به ضمیرغائب وی چه دهغے تمییز به نکره موصوفه وی - دا ضمیر غائب همیشه دپاره واحد مذکر غائب وی -
ضابطه ۲۳۶ : ما استفهامیه باندے چه کله حرف جارهٔ داخل شی، نوالف دما استفهامیه په کتابت او لوستو کښې ساقطیږی، لکه عم یتساءلون، لم تفعلون، فیم کنتم، فیم انت من ذکراها-

فبم تبشرون -

ضابطہ ۲۳۷: مدخول د رب خپل مابعد دپارہ مفعول گرځي که چرے مابعد کښے د عمل استعداد وی، لکه: رب رجل کریم لقیت - که چرے استعداد په کښے نه وی، نو مبتداء به وی - لکه: رب رجل کریم لقیته --

فائده: کله رُبَّ محذوف وی او عمل ئے باقی وی لیکن واو اوفاء نه پس زیات او بل نه پس لږ حذف کیږی، او کله بخیر ددے نه هم رُبَّ حذف کیږی -

فائده: کله رُبَّ او حروفِ جاره حذف کولے شی او عمل ئے باقی وی، څه مقامات سماعی دی، لکه: خیر والحمد لله - او څه قیاسی دی - مثلا قسم کښے لفظِ الله نه وړاندے، لکه: الله لافعلن کذا، ټول دیارلس مقامات دی - ان شئت فارجع الی المطولات -

ضابطہ ۲۳۸: خلا، حاشا، عدا نه پس که چرے اسم مجرور وی، نو دا به حرفِ جار وی، او که چرے منصوب وی، نو فعل به دی، بهرصورت معنی به ئے د استثناء وی، یاد ساتئ په صورت د فعل کښے ددے فاعل به همیشه ضمیر مستتر وی، بیا به دا جمله حال وی - والله اعلم وعلمه اتم واحکم

ضابطہ ۲۳۹: خلا، عدا که چرے ما نه پس وی یا د کلام په شروع کښے وی نو بالیقین به بیا فعل وی، او خلا، عدا نه پس به اسم مرفوع وی، بناء برفاعلیت ماخلا، ماعدا نه پس به اسم منصوب وی بناء برمفعولیت -

## "النوع الثانی"

إِنَّ ، بِاَنَّ ، كَاَنَّ ، لَيْتَ ، لٰكِنَّ ، لَعَلَّ

ناصب اسم اند رافع در خبر ضدِ ما ولا

دا د عواملِ سماعیه دویمه نوعه ده، چه په دے کښے قول د شپږو عوامل دی چه دهغو نوم حروفِ مشبّه بالفعل دے، چه دا په جمله اسمیّه کښے عمل کوی، مبتداء ته نصب ورکوی، هغے ته اسم وائی او خبر ته رفع ورکوی، هغے ته خبر وائی -

**فائده** : دد ے حروفو د فعل سره په څلور د شپږو نو کښے مشابهت دے، لفظاً، معنیً، عملاً، اقساماً، دے وجے نه دے ته مشبّه بالفعل وائی -

**فائده** :- عمل د فعل اصلی دے، د دے وجے نه هغه اوّل اسم یعنے فاعل ته رفع ورکوی او دویم اسم یعنے مفعول ته نصب ورکوی، او ددے عمل فرعی دے، دے اوّل ته نصب ورکوی - او دویم ته رفع ورکوی، په دے وجه سره دا ضابطه ده -

**ضابطه ٢٤٠** : چه ددے خبر په اسم نشی مقدّم کیدے مگر دا چه ظرف وی، لکه : ان الینا ایابهم، ان من الشعر لحکمة -

**ضابطه ٢٤١** : ددے حروفو نه پس مَا زائده راځی، چه هغه کافه دی یعنے عمل نه منع کوی، لکه : انما الحکم الله واحد

**ضابطه ٢٤٢** : حروفِ مشبّه بالفعل نه پس هر یو ما کافه نه وی بلکه دے نه پس ما مُوصوله یا مُوصوفه هم دی، چه هغه مانع عمل لره نه وی، عمل باقی وی -

**ضابطه ٢٤٣** : ما کافه همیشه د پاره دے حروفو سره متصل لیکلے کیږی، لکه : انما - اَوْ موصوله او موصوفه منفصله لیکلے شی دے د پاره چه دواړو کښے فرق واضحه شی -

**ضابطه ۲۴۴ :** که چرے د دے حروفو په اسم باندے عطف کول غواړے نو عطف بالنّصب به وی، خواه که هغه معطوف مقدّم وی یا مؤخروی، لکه: ان سعیدا و خالدا مسافران، ان سعیدا مسافر و خالدا - لیکن کله کله مبتداء محذوف الخبر په وجه سره مرفوع لوستلے کیږی، کله چه معطوف خبرنه مؤخروی، لکه: ان الله برئ من المشرکین ورسوله -

یادساتئ! اَنَّ، اِنَّ، لکنَّ سره مختص دی، اوکله خبرنه وړاندے هم وی، لکه: ان الذین امنوا والذین هادوا والصابئون الخ دلته کښے والصابئون مبتداء محذوف الخبر ده او جمله معترضه ده-

# د حروف مشبه بالفعل معانی

اِنَّ او اَنَّ دواړه د مضمونِ جمله تحقیق او تاکید دپاره راځی- لیکن په دوی کښے فرق دے -

**فرق ۱ :** اَنَّ جُمله په تاویل د مفرد کښے کرځوی، په دے وجه سره دا اَنَّ سره د خپلے جملے نه، فاعل مبتداء او مفعول - وغیره جوړیږی، او اِنَّ دغه شان نه دے -

**فرق ۲ :** اِنَّ د کلام ابتداء کښے واقع کیږی - او اَنَّ دغه شان هیڅکله نشی واقع کیدے -

**فائده :** د جملے د مضمون معنی د جملے خلاصه ده - د جملے اسمیے د مضمون راویستلو طریقه داده چه که چرته خبر مشتق وی، نو دهغے مصدریه راؤباسے او مبتداء طرفته به مضاف کړے شی، لکه زید قائم نه قیام زید او ان زیدا قائم نه حققت قیام زید اوکه چرته خبرجامد وی نو په آخر د خبر کښے

به یائی نسبتی زیاتی کړے، او مبتداء طرفته به ئے اضافت اوکړے شی، لکه: هذا زید نه زید یهٔ هذا -

اوکه چرے خبر ظرف وی، نو دهغے متعلق به را وباسی او د هغے مصدر به مبتدا و طرفته مضاف کړے شی، لکه: زید فی الدار نه استقرار زید فی الدار- او د جملے فعلیئے د مضمون را ویستلو طریقه داده، چه فعل نه به مصدر را و باسی او فاعل طرف ته به ئے اضافت اوکړے شی، لکه: قام زید نه قیام زید -

**لکنّ**: دا د استدراك د پاره راځی، چه د دے معنی سابقه کلام نه پیدا کید ونکے وَهم دفع کول دی، د دے د وجے نه دا همیشه د پاره د دوو جملو په مینځ کښے واقع کیږی، او اولے جملے ته موهمه. او دویمے یعنی مابعد والا جملے ته دافعه وائی - لکه: وان من شیئ الا یسبح بحمده ولکن لا تفقهون ....... تسبیحهم -

**یاد ساتئ**: چه د دے دواړو جملو کښے مُغایرت ضروری دے خواه که تغایر لفظی وی یعنے یو مثبت وی او بل منفی وی، لکه: قام زید ولکن عمرا لم یقم - یا تغایر معنوی وی، لکه:- قام زید ولکن عمرا غائب -

**کأنّ**: دا حرف تشبیه د پاره راځی، په دے شرط چه خبر جامد وی، چه د خپل اسم تشبیه د خپل خبر سره ورکوی، لکه: کأنّ زیدا اسد، کأن هذا قمر، او که چرے خبر جامد نه وی، نو بیا د دے د تشبیه معنی نه ورکوی، بلکه په معنی د ظن سره وی، لکه: کأنك مریض -

نوټ:- إنّ، أن، کأنّ، لکن- په دے څلورو حروفو کښے

نون مشدّد دے، دا مخفّف هم وی، تخفیف نه پس به دا عامل وی یا به غیرعامل وی، چه هغے دپاره ضوابط دادی -

**ضابطه ۲۲۵ :** اِن مخففه که چرے په فعل باندے داخل وی، نو بیا به غیرعامل وی، چه هغے دپاره لام تاکید ضروری دے، او هم دا ددے علامت دے، لکه: ان کنت من قبله لمن الغفلین - او که چرے په اسم باندے داخل وی، نو بیا غیر عامل کیدل ډیردی او عامل کیدل ئے لږدی، لکه: وان کلا لما.

**ضابطه ۲۲۶ :** اَنْ مخففه همیشه دپاره عامل وی چه د هغے اسم همیشه دپاره ضمیرِ محذوف وی، لکه: علم ان سیکون

**ضابطه ۲۲۷ :** اَنْ مخففه همیشه دپاره په جمله باندے داخلیږی، خواه که جمله اسمیه وی، لکه: اخر دعوٰهم - اَن الحمد لله رب العالمین - یاکه جمله فعلیه وی، لکه: وان لیس للانسان الا ماسعی -

**ضابطه ۲۲۸ :** که چرے اَنْ پس دهغه فعل نه وی کوم چه مفید للعلم والیقین وی، نو مخففه من المثقّله وی چه دهغے نه پس به رفع واجب وی - لکه: علم ان سیکون -

او که چرے پس د فعل نه وی چه هغه مفید للظن وی - نو بیا دوه صُورتونه جائزدی (۱) مخفّفه (۲) ناصبه، لکه: وحسبوا ان لا تکون - کښے دواړه قراءتونه شته .

**ضابطه ۲۲۹ :** لکنّ مشدّد ده همیشه حرف مشبّه بالفعل وی او لکِن مُخفّفه حرف غیرعامله عاطفه وی - په دا سے وخت کښے په اسم او فعل دواړو باندے داخلیږی -

**ضابطه ۲۵۰ :** کله لکِنَّ نه و راندے واو وی، چه هغه

عاطفه وی یا اعتراضیه، لکه: انك لا تهدی من احببت و لکن الله یهدی من یشاء -

**ضابطه ۲۵۱ :** کأنَّ همیشه دپاره عامل وی، برابره ده، که مثقله وی یا که مخففه وی، چه دد ے اسم اکثر ضمیرِ محذوف وی آو داپه فعل داخلیږی، لکه: کان لم تغن بالامس، اصل کښې دے - کأنه لم تغن بالامس - او که اسم ظاهر کښې هم عمل کوی، لکه: کان ثدیاه حقان -

**نوټ :** دلیت، لعل تشریح په تنویر کښې اوګورئ - په اقسامو دا نشاء کښې -

**ضابطه ۲۵۲ :** اَنَّ او اِنَّ دپاره څومره مقامات دی (تنویر شرح نحومیر کښې اوګورئ)

**ضابطه ۲۵۳ :** که چرے علم په معنی ددانستن وی، نو بیا به متعدی وی یو مفعول ته، او که په معنی دیقین وی، نو بیا متعدی کیږی دوآو مفعولوته - لیکن کله چه دِے نه پس اَنَّ وی نو بیا جمله قائمقام ددواو مفعولونوګرځی - لکه :- واعلم ان الله علی کل شیئ قدیر -

**امثله :** ان هذا لهو القصص الحق، واشهد ان محمدا عبده ورسوله، لعل الله یحدث بعد ذلك امرا، لعلك باخع نفسك، یالیتنا نرد ولا نکذب بایات ربنا - که چرے واو په معنی دفاء سره وی، نو ان اردنا ئے شرط شواو مابعد ئے جزاء شوه - او که چرے واو صرف وی نو تقدیرد عبارت به دارنګ شی - یالیت لنا ردا وانتفاء التکذیب -

## النوع الثالث

**مَاوَلَا** المشبهتین بلیس: داد عوامل سماعی دریمه نوعه ده چه په دے کښې دوه عاملان دی۔ مَا ولَا۔ دد وی عمل دا دے، چه دا په جُمله اسمیّه باندے داخلیږی، مبتداء ته رفع ورکوی او هغې ته اسم وائی، او خبر ته نصب ورکوی او هغې ته خبر وائی۔

**وجه تسمیه:** بهت دد دے دلیس سره عملی او معنوی مشابهت دے۔ عملی مشابهت خو دا دے چه لکه څنګه چه لَیْسَ ړُدمبی اسم ته رفع ورکوی او دویم اسم ته نصب ورکوی، د غه شان دوی هم ړومبی اسم ته رفع ورکوی او دویم اسم ته نصب ورکوی۔ معنوی مشابهت ئې دا دے چه لیس هم د نفی معنی ورکوی۔ او دوئ هم د نفی معنی ورکوی۔

**ضابطه ۲۵۵:** دما مشابه یه لَیْسَ په خبر باندے اکثر باءِ زائده راځی۔ لکه: وما الله بغافل عما تعملون۔ وما هم بمؤمنین۔

**دما مثال:** ما هن امهاتهم ما هذا بشرا۔

**دلا مثال:** تعز فلا شیٔ علی الارض باقیا ÷ ولا وزر مما قضی الله واقیا ÷ باقی تفصیل تنویر کښې اوګورئ!

## النّوع الرّابعُ

واو ویاء همزه الا ایا اے هیَا
ناصب اسمند پس این هفت حرف اے مقتداء

په دے څلورمه نوع کښې ټول اووه عوامل دی، پنځه حروف نداء او اِلّا استثنائیه، په دے شرط چه مستثنی مفرغ نه وی۔ آ و آو

په معنی د مَعَ سره چه هغه په مفعول معه باندے داخلیږی د دے عمل دا دے، چه دا اسم ته نصب ورکوی دا د شیخ مذهب دے، او د جمهورو په نیز دا غیر عامل دی، او عامل فعل یا شبه فعل وی -

**ضوابط :** اقسام دَ مُنادَیٰ او شپږ ضوابط د تنویرنه یادکړئ

**امثله :** مثالِ واو: سرت والطریق، اناسا ئروالليل -

مَثال دالاَّ: فلولا كانت قرية امنت فنفعها ايمانها الا قوم یونس الاّ په معنی د لکِنَّ سره دے، خبرئے محذوف دے، لکن قوم یونس نفعها ایمانها -

**مثال د الا :** یبنی لا تشرك بالله - یالله للمسلمین .

منادی مستغاث باندے لام جاره مفتوحه راځی چه هغه د ادعو او استغیث مقدر تقویت کوی، او د هغے مدخول مفعول به وی او هغے نه پس مستغاث له وی، په هغے هم لام جاره داخلیږی، لیکن هغه مکسوره وی، د دے د پاره چه فرق راشی او دا متعلق وی دادعو یا استغیث فعل مقدّر پورے -

**مثال دایا:** ایا سعید صل - **مثال دهیا :** هیا سید القوم اقض —— **مثال دای :** ای اخی فخلیلی -

**مثال د همزے :** اشی قتارا -

## النَّوعُ الخامِسُ

ان و لن پس کی اذن این چار حرفِ معتبر
نصب مستقبل کند این جمله دائم اقتضاء

په دے پنځمه نوع کښے فقط څلورعوامِل دی چه نوم ئے حروف

نواصِب دے، آحقر په شرح تنویر کښې د دے مفصل بحث کړے دے، هلته کښې ئې یَا د کړئ!

**مثال دان** :ــــ وان تصوموا خیر لکم، وحسبوا ان لا تکون فتنة -

**مثال دلن** : الا وان نفسا لن تموت حتے تستکمل رزقه

**مثال داذن** : واذن لا یلبثوا، فاذا لا یؤتوا -

ے اذن والله نرمیهم بحرب
یشیب الطفل من المشیب

**مثال دکی** : لکیلا تأسوا -

## النّوع السّادِسُ

ا ان ولم لما ولام امر لاءِ نهی نیز
پنج حرف این جازم فعلند هر یک بے دَغا

په دے نوع کښې پنځه عوامل بیا نیږی، چه نوم ئې حروفِ جازمه دے، د دے عمل دا دے چه دا فعل مضارع ته جزم ورکوی۔ تفصیل په تنویر کښې اوګورئ -

**مثالونه مثال دان** : ان تبو وا الصدقات فنعما هی -

**مثال دلم** : لم تستطع علیه صبرا - **مثال دلما** : ولما یدخل الایمان فی قلوبکم - **مثال دلام** : لینفق ذو سعة من سعته - ولنحمل خطیکم - **مثال دنهی** : اللهم لا تمتنی حتی ترینی علیا (الحدیث)- ضابطے تنویرنه یاد کړئ

## النّوع السّابِعُ

من وما مهما ای حیثما اذ ما متی
ایثما انی نه اسم جازم آمد فعل را

په دے اُوومه نوع کښے نهه عوامل بیا نیږی چه دهغے نوم اسماءِ شرطیه جازمه دے، چه عمل دإنْ شرطیه کوی، یعنے په دواو جملو باندے داخلیږی، یوجملے ته شرط وائی او دویمے ته جزاء وائی، او فعل مضارع ته جزم ورکوی، ضابطے د تنویر نه یاد ے کړئ -

**مثالونه :** مثال دمن: من یفعل ذلك یلق اثاما -
مثال دما: وما تفعلوا من خیر یعلمه الله - مثال دای: ایا ما تدعوا فله الاسماء الحسنی - مثال دایںما: اینما تکونوا یدرککم الموت - مثال دمهما: مهما تأتنا به من ایة لتسحرنا بها فما نحن لك بمؤمنین - مثال دحیثما: حیثما تقعد اقعد - مثال داذما: اذ ما تسافر اسافر -
مثال دمتی: متی تذهب اذهب - مثال دانی: انی تکتب اکتب -

## النَّوعُ الثَّامِنُ

ناصب اسم منکر نوع ہشتم چار اسم
ہست چون تمیز باشد آن منکر ہر کجا

اولین لفظِ عشر باشد مرکب با احد
ہم چنین تا تسع وتسعین برشمر این حکم را

باز ثانی کمْ چون استفہام باشد نے خبر
ثالث ایشان کاین رابع ایشان کذا

دعوامل سماعیه دے اتمه نوع کښے د خلورو عواملو بیان

دے، چه ددے عمل دادے چه دااسم نکره باندے داخلیږی، او
هغې ته نصب ورکوی چه هغې ته تمیز وائی -
اول احد عشرنه داخله تسع وتسعین پورے، لکه: رأیت
احد عشرکوکبا والشمس والقمر رأیتهم لی ساجدین، فتم
میقات ربه اربعین لیلة - تسع وتسعون نعجة -
دوېم: کم استفهامیه: لکه: کم رجلا لقیت -
درېم: کاین: ددے تمیز اکثر د مِنْ په وجه سره مجرور وی
لکه: وکاین من دابة لا تحمل رزقها، او کله منصوب وی، لکه:
ے اطرحوا الیاس بالرجا ÷
فکای الما حم یسرة بعد عسر ÷
څلورم کذا :- داهم تمیزته نصب ورکوی، کله مکرر وی
مع العطف او کله بغیر د عطف نه، لکه: ملکت کذا وکذا درهما -
داد کذا اوّل تمیز دے او دوېم کذا تاکید دے -
فائده: کاین کښے یو څو نور لغات هم دی -
هست کاءِ مثل قاض نیز کئ هم چون بیع
پس کأ همچو عم کئ کظبی اے فتا
فائده: د کذا درے قسمونه دی (۱) جار مجرور (۲) کذا-
کنائی د غیر عدد نه، لکه: یقال للعبد یوم القیمة اتذکر یوما
کذا وکذا و فعلت کذا وکذا (الحدیث) -
په دے دواړو صورتونو کښے تقاضا د تمیز نه کوی -
(۳) کذا کنائی د عدد نه لکه: دے وخت کښے تقاضا د تمیز کوی -
فائده: کذا او کاین همیشه د پاره خبریه وی -
ضابطه ۲۵۶: د کم دوه قسمونه دی (۱) استفهامیه (۲)

خبریه - استفهامیه: په معنی دای عدد تمیز دے مفرد منصوب وی - او خبریه بمعنی کثیر، د دے تمیز مفرد مجرور یا جمع مجرور وی، **ضابطه ۲۵۷**: دکم استفهامیه او کم خبریه په تمیز باندے مِنْ داخلول جائز وی - لکه: کم من مال انفقته -
که چرے دکم او دهغه د تمیز ترمینځه فعل متعدی فاصل ؤ، نو بیا دخول د مِنْ واجب دے، لکه: کم اهلکنا من قریة -
**ضابطه ۲۵۸**: هرکله چه قرینه موجوده وی، نو بیا حذف د تمیز جائز دے، لکه: کم مالك - کم ضربت - چه په اصل کښے کم دینارا مالك او کم ضربة ضربت دے -
**فائده**: اسماء عدد: تعریف دد ے، ماوضع لکمیة الشئ - ۲ اعداد د[۱۲] ولس دی - احد نه واخله تر عشر پورے او عقود ثمانیة عشرون نه تر تسعون پورے -
مأة الف دے سره عدد غیر متناهی مرکب کیږی -
۳ **طریقهٔ** استعمال: د واحد، اثنان استعمال مطلقا - موافق د قیاس یعنے مذکر بغیر د تاء نه او مؤنث سره د تاء نه راځی خواه که ترکیب کښے وی، یا غیر ترکیب کښے، مع العطف وی یا بغیر د عطف نه وی، بیا د ثلثة نه تسعة پورے مطلقا خلاف قیاس راځی -
لفظ د عشر ترکیب کښے موافق د قیاس راځی، او په غیر ترکیب یعنے حالتِ افراد کښے خلاف القیاس راځی - عقود ثمانیه او لفظ د مأة الف مذکر او مؤنث د پاره یو شان دی -
طریقهٔ ترکیب: احد عشر نه تر تسعة عشر پورے به حرف عطف مقدر وی، او دواړه جزه به مبنی بر فتحه وی، لیکن اثنا

عشر- بیا احد و عشرون نه ذکر د حرف عطف ضروری دے۔

**ضابطہ ۲۵۹:** که چرے مختلف اسماء عدد ذکر کول وی، نو اَلفٌ به په مِائَةٌ باندے او مِائَةٌ به په آحاد باندے - او بیا آحاد به په عشر باندے مقدّم کیږی، لکه: عندی الف و مائة و احد و اربعون دینارا -

**ضابطہ ۲۶۰:** د واحد او اثنان تمیز نه وی د باقی تمیز وی. اسماء عدد د په اعتبار د تمیز سره په درے قسمه دی —

(۱) عدد ادنیٰ - د ثلثة نه عشرة پورے، د دے تمیز جمع مجرور راځی، لکه ثلثة رجال، ثلث نسوة - (۲) عدد اوسط: احد عشر نه تر تسع و تسعون پورے - د دے تمیز مفرد منصوب راځی، لکه: احد عشر رجلا -

-(۳)- عدد اعلیٰ: د مائة او د الف او د دویٔ د تثنیٔے او د جمعے تمیز مفرد مجرور وی، لکه، مائة رجل، الف امرأة -

**ضابطہ ۲۶۱:** اسم فاعل من العدد په دوه قسمه دے۔

(۱) مفرد - لکه، ثان، ثانیة - ثالث، ثالثة - د دے نه مراد د عدد خپل حال بیانول وی، لکه: والخامسة ان غضب الله علیها -

(۲)-دویم مرکّب: بیا د مرکّب دوه قسمه دی، یا خو به دے دخپل مشتق منه سره مستعملیږی، نو د غه وخت به د مشتق منه بعضے مراد وی، لکه، ثانی اثنین، ان الله ثالث ثلثة -

آو یا به د مشتق منه نه د عددِ سابقه سره مستعملیږی- آو په دے کښے به معنیٰ د تصییر موندلے کیږی- یعنے جعل الاقل مساویا لمافوقه- لکه: ثالث اثنین ای جاعل الاثنین ثلاثة -

ضوابط: دوه ضابطے د"کم" تنوین نه یادے کړئ۔

**ضابطه ۲۶۲:** کله کله په کذا باندے هَا د تنبیه داخلیږی دغه وخت کښے بیا عدد بیانول مقصود نه وی، بلکه په یو خاص کیفیت باندے تنبیه مقصود وی۔ نبی کریم صلی الله علیه وسلم او فرمائیل: هکذا انبعث یوم القیمة، حال دا چه نبی طرفته حضرت ابو بکر صدیق رض او کس طرفته حضرت عمر فاروق رض وو

ضمیر از عدد برسه نمط دان
از سه تا ده همه مجموع و مجرور
زیازده تا بصد همه فرد ند و منصوب
زصد بالا همه فرد ند و مکسور !!

**ضابطه ۲۶۳:** اسم عدد که چرے مفرد وی نو د باقی اسماؤ په شان دا هم معرّف ذکر کیدے شی، لکه: الواحد، الاثنان۔

او که چرے مرکّب عددی وی نو بیا رو مبے جزء به معرّف وی لکه: الاحد عشر، او که چرے مرکّب اضافی وی، نو جزء ثانی به معرّف وی۔ لکه: ثلثة الاقدام،

او که چرے اضافتِ متعدده وی نو اخری جزء به معرّف وی، لکه: خمس مأة الالف، او که چرے عدد معطوف او معطوف علیه وی نو دواړه اجزاء به معرّف وی، لکه: الخمسة والخمسون رجلا

## النوع التاسع

نه بود اسماء و افعال کزان شش ناصبند
دُونَك بَلْه عَلَيْك حَيهل باشد و هَا
پس رُوَيد باز رافع اسم را هَيْهَاتَ دان

باز شتّان است سرعان یا دگیراین بنیہا!

دَعوامل سماعی په دے نوع کښې نهه عوامل بیانیږی، چه ددے نوم اسماءِ افعال دے - دا خودی اسماء لیکن عمل او معنی دفعل وړکوی، په دے وجه سره ړے ته اسماءِ افعال وائی -

**ضابطه ۲۶۴ :** دے دپاره شلوړ حکمونه دی - اوّل : دا - مضاف نه واقع کیږی - روید زید، دا مصدر دے فعل نه دے ثانی - ددۀ معمول نه مُقدّم کیږی، هٰذا انفسکم علیکم وئیل به غلط وی، لیکن په نیز دامام کسائی جائز دے، دلیل ئے داپیش کوی - کتاب الله علیکم -

ثالث: ددے په جواب کښې به مضارع منصوب نه وی مجزوم به وی. رابع: په دے کښې به متوّن نکره وی او غیرمنوّن به معرفه وی -

**ضابطه ۲۶۵ :** په هَا کښې یوڅولغات دی (۱)-ها، هاءا - هاءوا هاءی، هاءا، هَئن - (۲) هاءِ بکسرهمزه هاءِ، هاءِیا هاءو، هاءی، هاءیا، هِئن - (۳) تاءسره، هات، هاتیا. هاتو (۴) همزه مفتوحه اوتثنیه اوجمع کښې دمیم اضافه کول، هاء، هاءما، هاءم، هاءمن -

هیهات هیهات لما توعدون، علیکم انفسکم - وی کا نه لا یفلح الکافرون، حی علی الصلوة، هاؤم اقرءوا کتابیه امین رب العالمین - الیکم ایها المشرکون -

## النَّوعُ العَاشِرُ

نوع عاشر سیزده فعلند کایشان ناقصند

رافع اسمند ناصب در خبر چون ما ولا
كَانَ صَارَ أَصْبَحَ أَمْسٰى أَضْحٰى ظل باتَ
مَا فَتِئَ مادَام مَاانفك پس باشد از قفا

په دے لسمه نوع کښې افعالِ ناقِصه بیانیږی، د دوئ دا عمل کوی چه اسم ته رفع ورکوی او خبرته نصب ورکوی -

**فائده :** د دے افعالو پشان د دوی مشتقات هم عمل کوی زیات تفصیل تنویر کښې اوګورئ!

**مثالونه :** کان الله علیما حکیما - لا یزالون مختلفین - یبیتون لربهم سجدا وقیاما، واوصانی بالصلوة والزکوة مادمت حیا، لن ابرح الارض، اصبحوا نادمین، لیسوا سواء من اهل الکتاب، ما انفك القاضی عادلا - فظلت اعناقهم لها خاضعین -

## النَّوع الحَادِیْ عَشَرَ

دیگر افعال مقارب در عمل چون ناقصند
هست آن کَادَ کَرُبَ اَوْشَكَ دیگر عَسٰی

په دے نوع کښې افعال مقاربه بیانیږی چه هغه څلور دی - د دوئ عمل په شان د افعالِ ناقِصه دے، لیکن د دوئ خبر به همیشه د پاره فعل مضارع وی -

**مثالونه :** عسی الله ان یجعل بینکم وبین الذین عادیتم منهم مودة، یکاد البرق یخطف ابصارهم - یوشك ان یأتینی رسول ربی فاجیب -

**ضابطه ۲۶۶ :** عسی ..... ان یخرج زید په شان مثالونو-

د۳ رے ترکیبونه (۱) عسی فعل تام ان یخرج زید په تاویل دمصدر سره فاعل د عسی شو (۲)- ان یخرج جمله فعلیه خبر مقدّم- زید ئے مبتداء موخره، دا جمله اسمیه فاعل د عسی شو- (۳) عسی فعل مقارب ضمیر اسم جمله خبر -

## النوع الثانی عشر

دَ عوامل سماعیهٔ په دے دولسمه نوع کښے ټول اوه عوامل دی چه نوم ئے افعالِ قُلوب دی، ځکه چه د دے افعالو معنے تعلّق زړهٔ سره وی، د دے عمل دا دے، چه دا په جمله اسمیّه باندے داخلیږی دواړو ته نصب ورکوی بناء بر مفعولیّت -

**ضابطه ۲۶۷ :** که چرے عَلِمَ په معنی د عَرَفَ سره، رَأٰی په معنی د اَبْصَرَ سره، ظَنَّ په د اتَّهَمَ، وجدت په معنی د اصبت سره وی، نو بیا به یو مفعول ته متعدّی وی -

**ضابطه ۲۶۸ :** افعال قلوب د پاره درے احکام دی تنویر

**فائده :** افعال تصییر هم دا عمل کوی، چه هغه دا دی:-

جعل ، صیر ، رد ، تخذ ، هم ، وهب

هم چون قلب این فعل تحویل اندرین میمون لقاء

**مثالونه :** انی لاظنك یا فرعون مثبورا، و وجدوا ما عملوا حاضرا- فان علمتموهن مومنات، انهم یرونه بعیدا-

شعر ؛ زعمتنی شیخا ولست بشیخ ؛

؛ انما الشیخ من یدب دبیبا ؛

## النوع الثالث عشر

په دے نوع کښې د څلور دعوا ملوذکر دے (۱) نعم (۲) بئس. (۳) ساء (۴) حبذا، چه دد ے نوم افعالِ مدح او افعالِ ذم دے. دد ے د فاعل تفصیل په تنویر کښې دے ۔

**ضابطہ ۲۶۹ :** د نعم الرجل زید ۔ څلور ترکیبه دی.
(۱) نعم فعل، الرجل ئے فاعل، دا جمله انشائیه خبریه زید مخصوص بالمدح مبتداء مؤخره دا جمله اسمیه انشائیه
(۲) نعم فعل، الرجل مبین زید ئے عطف بیان دے۔
(۳) نعم الرجل جمله انشائیه او زید خبر د مبتداء. دا جمله اسمیه خبریه - (۴) زید مبتداء محذوف الخبر. زید ئے ممدوح شو - په حَبَّذَا کښې هم څلور ترکیبه دی ۔

**ضابطہ ۲۷۰ :** که چرے د جملے یو جزء انشاء وی نو جمله به انشائیه وی ۔

**ضابطہ ۲۷۱ :** رُبَّ، افعالِ مقاربه، افعالِ مدح وذم، کم استفهامیه جمله انشائیه وی، که چرے افعالِ مُقاربه تامّه وی نو بیا به جُمله خبریه وی ۔

**ضابطہ ۲۷۲ :** مخصوص بالمدح او مخصوص بالذم - حذف کول جائز دی، نعم المولی ونعم النصیر، فنعما هی - دا په اصل کښې نعم ما ؤ، په قانون د شهد سره په کښې ادغام او شو ۔ دد ے دوه ترکیبه دی - (۱) ما په معنی د شیئ سره هغه فاعل (۲) نعم کښې ضمیر مبهم، ضمیر د ما په معنی د شیئا سره هغه تمیز ۔ ممیز سره د تمیز نه فاعل، هی په دواړو صورتو نو کښې مخصوص بالمدح دے ۔

# بِسۡمِ اللّٰه كښې تركيبي احتمالات (۲۱۵۴۲۴)

اوله مقدمه : د فعل ماضي او د فعل مضارع ۶ صيغې بيا ثقيله شپږ ۳۶ ديرش او خفيفه ځلير يشت تولے يو سل ۱۳۲ دوه ديرش، بيا امر حاضر او غائب سره د ثقيله او خفيفه نه تول (۸۲۴)، د اسم فاعل ۱۸ صيغې تولے (۱۴۸۳۲) دا د بسم الله متعلق جوړيږي، كله چه د بسم الله متعلق محذوف افعال عام نه اُو منو او مقدّم ئے او منو، او كه چرے مؤخّر ئے اومنو نو بيا (۲۹۶۶۴) احتمالات نو ۷ هُم شو،
تول احتمالات (۲۹۶۶۴) جوړيږي، كه چرے افعالِ خاصّه نه ئے مقدّم اُومنو، اوكه مؤخّر ئے اُو منو، نو ۲۹۶۶۴ احتمالات نو ۷ هم شو، تول احتمالات به (۵۹۳۲۸) جوړ شي -
د الحمد لله متعلق هم كيدے شي -

دويمه مقدمه : د بآء متعلق ځلور ۷ احتمالات دى (۱) باء د استعانت د پاره، كما هو المختار عند الزمخشري صاحب الكشاف (۲) باء د مصاحبت د پاره، كما هو مختار القاضي البيضاوي ۴ ۹۸ دلته كښې هم دى (۳) باء زائده اسم الله مبتداء خبر محذوف د افعالِ عامّونه مبتدئ يا افعالِ خاصّونه مقروئ -
(۴) باء قسميه عند القرطبي بيا د مادے د قسم نه فِعل محذوف اُقسِمُ راځئ،
بَيائے مقدّم منئے او كه مؤخّر، تول احتمالات (۲۹۶۶۴) شو، بيا د اسم او مادے د قسم نه اسم فاعل مقدّر اُوكنړه، د اسم فاعل

د باب افتعال شپږ صیغې، بیا مقدّم او مؤخّر، ټول ۱۲ ـ ټول ۵۰۴ ـ

**دریمه مقدمه :** په الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ کښې په اعتبار د اعراب سره نهٔه احتمالات دی ـ (۱) جرّهما (۲) نصبهما (۳) رفعهما (۴) رفع الاول جر الثانی (۵) رفع الاول نصب الثانی (۶) جر الاول نصب الثانی (۷) جر الاول رفع الثانی (۸) نصب الاول جر الثانی (۹) نصب الاول رفع الثانی ـ

**څلورمه مقدمه :** کله چه یو موصوف څخپله واضحه وی او هغه نه پس محضِ مدح د پاره متعدد صفات ذکرشوی وی نو په دغه صفاتو کښې د درېو ترکیبونو احتمال وی (۱) اتباع جمیع یعنې ټول صفات د موصوف تابع لوستل (۲) قطع جمیع یعنې ټول صفات د صفتیت نه منقطع منصوب لوستل د اَعْنِیْ یا اَخُصُّ فعل محذوف ـ د مفعولیّت په وجه سره، یا مرفوع لوستل بناء برخبریّت د مبتداء محذوف د پاره ـ

(۳) اتّباع البعض وقطع البعض، نو د مبنی دوه صورتونه په اتفاق سره جائز دی، او دریم صورت عند البعض مطلقاً جائز دے، او عند الجمهور اتباع بعض که مقدّم وی، نو جائز دی کنې ناجائز دی ـ

## تفصیل تراکیب

**الاحتمال الاوّل جرّهما :** د اَلرَّحْمٰنِ مجرور کیدو کښې درې احتمالات دی ـ

**اوّل احتمال :** دا صفت دے د لفظ الله د پاره ـ د اَلرَّحِیْم

په مجرور کيد وکښې اووه احتمالات دی (۱) د لفظِ الله صفت دے (۲) د الله نه عطف بيان دے (۳) لفظِ الله نه بدل دے (۴) صفت دے (۵) عطف بيان (۶) بدل (۷) لفظِ رحمٰن دپاره تاکيد دے۔ دا اووه ترکيبونه شول۔ يادساتئ د بعضو په نيز الرَّحْمٰن عَلَم دے۔

**دويم احتمال** لفظِ رَحْمٰن کښې۔ لفظ الله نه عطفِ بيان دے۔ اوس په دے صورت کښې په اَلرَّحِيْم مجرور کښې پنځه احتمالات دی (۱) الرَّحيم صفت دے (۲) لفظِ الله نه بدل دے (۳) صفت دے (۴) بدل دے (۵) د لفظِ الرَّحمٰن د پاره تاکيد دے۔ دا پنځه ترکيبونه شول۔

**دريم احتمال**: په لفظ رحمن کښې چه لفظِ الله نه بدل شي۔ په دے صورت کښې په الرحيم مجرور کښې اووه سابقه احتمالات او اووه دا شول۔ نو د اټول نولس ترکيبونه شول۔

**الاحتمال الثانی نصبها**: الرّحمٰن منصوب کيد وکښې درے احتمالات دی۔ ړومبے احتمال: الرَّحْمٰن منصوب دے اَعْنِيْ فعل محذوف سره بطريق القطع صفت دے لفظِ الله د پاره په دے صورت کښې الرحيم منصوب کيد وکښې پنځه احتمالات دی (۱) صفت (۲) عطف بيان (۳) بدل (۴) تاکيد دے لفظِ رحمن د پاره (۵) اَعْنِيْ ثانی سره منصوب دے، او په طريقه د قطع سره صفت دے لفظ الله د پاره، دا پنځه ترکيبونه شول

دويم احتمال: الرحمن منصوب دے په اَخُصُّ سره په طريقه د قطع سره صفت دے لفظِ الله د پاره۔

په دے صورت کښې هم په الرَّحِيم منصوب کيد وکښې سابقه

پنځه احتمالات دی.

دریم احتمال: اَلرَّحْمٰنَ منصوب دے په اَمْدَحُ سره، په طریقې د قطع سره صفت دے لفظِ الله دپاره - اَلرَّحِيْمِ کښې بیا هغه پنځه احتمالات دی. داټول پنځلس ترکیبونه شول.

الاحتمال الثالث رفعهما: الرّحمٰن مرفوع په طریقې د قطع سره خبر دے د مبتداء محذوف چه (هُوَ) دے - په طریقې د قطع سره صفت دے د لفظِ الله دپاره،

اَلرَّحِيْمُ مرفوع صفت دے یا عطفِ بیان دے یا بدل دے یا تاکید دے دالرّحمن دپاره - یا خبر ثانی دے داوّلنیٔ مبتداء محذوف دپاره - یا خبر دے د مبتداء ثانی محذوف دپاره چه هغه هو دے - داټول شپږ ترکیبونه شول

الاحتمال الرابع: جَرُّالاَوَّلِ نَصْبُ الثَّانِیْ: الرحمن مجرور کښې هم هغه درې احتمالات دی (۱) صفت (۲) عطفِ بیان. (۳) بدل، په هر صورت کښې په الرَّحِيْمَ منصوب کښې درې احتمالات دی (۱) منصوب په اَعْنِیْ سره (۲) منصوب په امدح سره (۳) منصوب په اَخُصُّ سره.

په طریقې دقطع سره صفت دے لفظِ الله دپاره. دا نهه احتمالات دی، دغه شان به دا نهه احتمالات نور هم حاصل شی، کله چه داالرَّحیم منصوب په طریقې دقطع سره صفت شی دالرَّحْمٰن دپاره - په دے څلورم احتمال کښې اتلس ترکیبونه شول.

الاحتمال الخامس جَرُّالاَوَّلِ رَفْعُ الثَّانِیْ: اَلرَّحْمٰنِ مجرور کښې هم هغه درې احتمالات دی (۱) صفت (۲) عطف بیان (۳)

بدل - په هرصورت کښې الرَّحِيْمُ مرفوع په طريقې د قطع سره صفت د لفظِ الله د پاره، يا د اَلرَّحْمٰن د پاره - دا - شپږ ترکيبونه شول.

**الاحتمال السادس : نصبُ الاوّل وجرّ الثاني** الرَّحْمٰن، منصوب دے په اَعْنِيْ يا اَمْدَحُ يا اَخُصُّ سره، په طريقې د قطع سره صفت دے لفظِ الله د پاره - او په هر صورت کښې الرَّحِيْم مجرور صفت دے يا عطفِ بيان دے يا بدل دے - درے ترکيبه جوړيږي، نو ټول نهه ترکيبونه شول -

**الاحتمال السابع : نَصْبُ الْاَوَّلِ وَرَفْعُ الثَّانِيْ**؛ اَلرَّحْمٰنَ منصوب کښې هم هغه درے احتماله دی او اَلرَّحِيْمُ مرفوع په طريقې د قطع سره صفت دے د لفظِ الله د پاره يا اَلرَّحْمٰن د پاره - ټول شپږ ترکيبونه شول -

**الاحتمال الثامن : رَفْعُ الْاَوَّلِ وَجَرُّ الثَّانِيْ**؛ اَلرَّحْمٰنُ مرفوع په طريقې د قطع سره لفظِ الله د پاره صفت دے، الرحيم مجرور صفت دے يا عطفِ بيان دے يا لفظِ الله نه بدل دے - دے آتم احتمال نه درے ترکيبونه حاصل شول -

**الاحتمال التاسع : رَفْعُ الْاَوَّلِ وَنَصْبُ الثَّانِيْ**؛ اَلرَّحْمٰنُ مرفوع په طريقې د قطع سره لفظِ الله د پاره صفت شو - الرحيم منصوب په اَعْنِيْ يا اَمْدَحُ يا اَخُصُّ سره په طريقې د قطع سره صفت دے لفظِ الله د پاره يا اَلرَّحْمٰن د پاره - په دے کښې شپږ ترکيبونه حاصل شو۔

او س اَلرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ سره چه نهه احتمالات صحيحه ملاؤ کړے شي، نو ټول اَته اتيا ترکيبونه صحيحه حاصل شول -

بَیا په متعلّق د ابتداء کښې دوه احتماله دی (۱) فعل محذوف به وی (۲) اسم محذوف به وی - د اسم تفصیل به روستو وی -
اوّل د فعل د متعلّق بحث ذِکر کیږی -
د بِسۡمِ اللّٰه متعلّق به فعل ماضی وی یا به مُضارع وی یا به اَمر وی، لکه: شَرَعۡتُ یا اَشۡرَعُ یا اِشۡرَعۡ،
بَیا په دے فعل متعلّق کښې په اعتبار د صیغو سره به هم هغه و رانډینی دوه سوه اته ویشت ۲۲۸ احتماله وی -
دا احتمالات چه کله افعالِ عامّه محذوف مُقدّم او منے، او که مؤخّرئے او منے نو دوه سوه اته ویشت ۲۲۸ احتمالات نور هم حاصل شول - ټول څلور سوه شپږ پنځوس ۴۵۶ احتمالات حاصل شول -
بَیا چه د افعال خاصّو متعلّق محذوف اُو منلے شی لکه: قَرَأۡتُ اَقۡرَأُ - اِقۡرَأۡ - لِیَقۡرَأۡ - په صُورت د تقدیم او تاخیر کښې (۴۵۶) احتمالات نور هم جوړیږی - ټول نهه سوه دولس ۹۱۲ احتمالات حاصل شول -
بَیا په دغه احتمالات متعلّقه کښې هر هر احتمال باندے الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ کښې د ۸۸ - ۸۸ ترکیبو نو احتمالات جوړیږی نو چه ۹۱۲ لره په ۸۸ کښې ضرب ورکړو نو ټول احتمالات او ترکیبونه اتیا زره دوه سوه شپږ پنځوس (۸۰۲۵۶) جوړ شول - دا ترکیبونه هله دی کله چه باء د مصاحبت د پاره وی او که باء د استعانت د پاره شی نو (۸۰۲۵۶) نور احتمالات او تراکیب هم حاصلیږی -
اُوس ټول تراکیب یولکه شپیته زره پنځه سوه دولس ۱۶۰۵۱۲

حاصل شول - دَباءِ مصاحبت او استعانت په صُورت کښې داد
الحمدُ متعلّق شول - دالرَّحمٰنِ الرَّحِیم به هم هغه احتمالات
وی نو یوسل شپږ اویا (۱۷۶) تراکیب نور هم حاصل شول
بیا دریم قول په باء زائده کښې دے -
اُوس اسم الله مبتداء او خبر محذوف ئے مبتدئ وی یا افعالِ
خاصّه نه مقرروئ خبر محذوف او منلے شی - په دواړو صورتونو
کښې دالرحمن الرحیم ۸۸، ۸۸ احتمالات شول، ټول احتمالات
یوسل شپږ اویا ۱۷۶ شول -
د باء زائده او دالحمد متعلّق ۱۷۶ او ۱۷۶ جمع کولو سره به
(۳۵۲) نوی تراکیب حاصل شی - دا داوّلنی تراکیبو سره د
ملا ولو په صورت کښې به ټول تراکیب یولکھ شپیته زره آته
سوه څلورشپیته (۱۶۰۸۶۴) جوړ شی -
بیا څلورم قول په باء کښې دادے چه باء قسمیه شی - بیا چه
کله د قسم د مادے نه فعل محذوف او منلے شی نو به فعلِ متعلّق
کښې هم هغه ۲۲۸ احتمالات دی - بیا په صورت د مؤخّر منلو
کښې ۲۲۸ ټول ۴۵۶ جوړیږی - آو د قسم د مادے نه اسم فاعل
محذوف منلو په احتمال باندے په صورت د تاخیر کښې شپږ[۶]
شپږ[۶] احتمالات چه دوَلس[۱۲] جوړیږی، اوس دولس چه د ۴۵۶
سره جمع کړے شی نو ټول ۴۶۸ احتمالات او تراکیب جوړیږی
بیا په ۴۶۸ احتمالاتِ متعلّق کښې په هرهر احتمال متعلق بانډِ
دالرحمن الرحیم اته[۸۸] اتیا اته[۸۸] اتیا تراکیب جوړیږی -
بیا ۴۶۸ لره په ۸۸ کښې ضرب ورکولو سره (۴۱۱۸۴) یو —
څلویښت زره یوسل څلور اتیا تراکیب جوړیږی -

دا بیا مخکښې تراکیبو سره جمع کولو په صُورت کښې ټول تراکیب حاصل شول، بیا چه د بِسۡمِ اللهِ متعلّق اسم وی د قسم د مادے نه علاوه بیا په دے کښې د دوه احتمالات دی۔ یا به دغه متعلّق د مصدر وی یا به اسم مُشتق وی، که چرے د اسم مصدر متعلّق وی، لکه: اِبۡتِدَائِیۡ بِسۡمِ اللهِ، نو دا به مبتداء وی او خبر به ئے "ثَابِتٌ" محذوف وی۔

په صُورت د تقدیم او تاخیر کښې د اَلرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡم ۸۸ - ۸۸ احتمالات جوړیږی، د واړو صورتونو کښې ټول ۱۷۶ جوړیږی بیا که چرے د افعالِ خاصّه نه محذوف اُومنلے شی، قِرَاءَتِیۡ بِسۡمِ اللهِ حَسَنٌ سره ۱۷۶ احتمالات نور هم حاصل شو چه دا ورسره جمع کړے نو ۳۵۲ جوړیږی - دا تراکیب د باءِ مُصَاحبت په صورت کښې دی او د باءِ استعانت په صورت کښې ۳۵۲ تراکیب نور هم حاصلیږی - چه دا ورسره جمع شی ۷۰۴ تراکیب جوړیږی۔

او چه دا اوّلنی تراکیبو سره جمع شی نو ټول تراکیب ..... ۲۰۲۵۲ جوړیږی - او چه بِسۡمِ اللهِ د اسم مُشتق متعلّق وی او د مبتداء محذوف خبر وی، لکه د اسم جامد - اسم مُشتق که افعالِ عامّه نه وی په صُورت د تقدیم یا تاخیر کښې یا که افعالِ خاصّه نه وی۔ اَنَا قَارِئٌ بِسۡمِ اللهِ۔

بیا په تقدیم او تاخیر کښې ۳۵۲ احتمالات حاصل شول، بیا د اسم فاعل ۱۸ صیغے چه ۳۵۲ ته په ۱۸ کښې ضرب ورکړے شی نو ۶۳۳۶ احتمالات جوړیږی، دا احتمال په هغه صورت کښې چه باء د مُصَاحبت د پاره وی، او که چرے باء د استعانت

دپاره وی نوبیا ۶۳۳۶ احتمالات حاصل شول، دا چه سره جمع شی نو ۱۲۶۷۲ احتمالات جوړیږی - اوس چه داد مخکنو ترکیبو سره جمع شی نو ټول تراکیب د دوه لا کهه پنځلس زره څلورسوه څلیریشت (۲۱۵۴۲۴) حاصل شول -

## یوولس ترکیب دَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ

ترکیب نه مخکښې یوه مقدّمه اُو پیژنئ! - کلمه د اِلَّا په دوه قِسمه ده (۱) اِلَّا استثنائیّه (۲) اِلَّا په معنی د غَیْرُ سره -
اِلَّا استثنائیه بالاتِّفَاق حرف دے او مَبْنِیُ عَلَی السُّکُون دے لَا مَحَلَّ لَهٗ مِنَ الْاِعْرَابِ - لیکن اِلَّا چه په معنی د غَیْرُ سره شی دے کښې اختلاف دے،
په نیز د جُمهُور و دا حرف دے مَبْنِیُ عَلَی السُّکُون لَا مَحَلَّ لَهٗ مِنَ الْاِعْرَاب دے - ځکه چه د اِسمیّت، فِعلیّت او حرفیّت دارو مدار په اصلِ وضع باندے دے، او دا په اصلِ وضع کښې حرف دے -
او په نیز د بعضے نحاتو باندے دا اسم دے، لیکن د دے اعراب په طریقے د عاریّت سره د دے په ما بعد کښې جاری کیږی، لکه لَوْکَانَ فِیْهِمَا اٰلِهَةٌ اِلَّا اللّٰهُ کښې، په نیز د جُمهُور و مجموعه د اِلَّا اللّٰهُ صفت دے د اِلٰهٌ بناء برقول مشهور او عطف بیان دے په قول د بعضو باندے، صِرف اِلَّا صفت نشی واقع کیدے ځکه چه دا حرف دے، او نهٔ یواځے لفظِ الله صفت واقع کیدے شی، ځکه چه دا اعلم دے - او په نیز د بعضے نحاتو ترکیب به دا رنګه

وی، اِلَّا اسم په معنی دغَیْرُ سره مَبْنِي عَلَى السُّكُوْن مرفوع۔ مَحَلًّا مُضاف، لفظِ الله مجرور تقدیراً مُضافُ الیه، مُضاف سره د مضافُ الیه نه صفت دَاِلٰهَ دے یَا عطفِ بَیان دے په قول د بعضو باندے ۔

اول ترکیب : ـــــ لَا لِنَفْيِ الْجِنْسِ اِلٰهَ مَبْنِيٌ عَلَى الْفَتْحِ مبدل منه اِلَّا اِستثنائیه اَللهُ مرفوع لفظاً بَدَلُ الْبَعْضِ دے (ترجمه)؛ نشته هیڅ یو مَعبُود موجُود مګرالله تعالی دے۔

دویم ترکیب : ـــــ لَااِلٰهَ موصُوف، اِلَّا په معنی د غَیْرُ سره مُضاف، لفظِ الله مرفوع لفظاً مجرور تقدیراً مُضافُ الیه مضاف سره د مضاف الیه نه صفت د الله، موصوف سره د صفت نه اسم د لَا شو، چه خبرئے مَوْجُوْدٌ محذوف دے۔ نو تقدیرئے دا رنګ شو، لَااِلٰهَ غَیْرُاللهِ مَوْجُوْدٌ۔

(ترجمه): نشته هیڅ یو معبود چه غَیْرُالله دے موجود ۔

دریم ترکیب :- لَااِلٰهَ مَتْبُوْعٌ اِلَّا اللهُ په معنی د غَیْرُ الله سره عطفِ بیان دے، خبرئے مَوْجُوْدُ محذوف دے ۔

(ترجمه): نشته هیڅ یو معبود یعنې غیرالله موجود ۔

څلورم ترکیب : هم دا سابقه ترکیب دے، اَلبته اِلَّا الله په معنی د غَیْرُالله سره هغه بَدَلُ الْکُلّ شو د لا د اسم د محل نه ۔

پنځم ترکیب : ـــــ دا ترکیب دَاوّلنی ترکیب په شان دے اَلبته د دے خبر مُسْتَحِقٌّ لِلْعِبَادَةِ محذوف دے، اُوس عبارت دا رنګ شو۔ لَااِلٰهَ مُسْتَحِقٌّ لِلْعِبَادَةِ اِلَّا اللهُ ۔

شپږم ترکیب : ـــ اِلَّا اللهُ په معنی د غَیْرُاللهِ سره خبر

دے، اوس عبارت دا رنګ شو "لَا اِلٰهَ غَيْرُ اللهِ" -

**اووم ترکیب :** لَا اِلٰهَ خبر مقدّم دے، او "اِلَّا الله" مبتداء مؤخره ده - او دا قَضِيّه مَعْدُوْلَةُ الطَّرَفَيْنِ ده، نو عبارت دا رنګ شو، غَيْرُ اللهِ لَا مَعْبُوْد په معنی د اَللهُ مَعْبُوْدٌ سره لګه غَيْرُ الْحَيِّ لَا عَالِمٌ په معنی د اَلْحَيُّ عَالِمٌ سره -

**اتم ترکیب :** په نیزد بنو تمیم لَا په معنی د اِنْتَفٰى دے اِلٰهَ ئے موصوف، اِلَّا اللهُ په معنی د غَيْرُ اللهِ سره صفت شو، موصوف سره د صفت نه مرفوع محلًا فاعِل د اِنْتَفٰى شو، نو عبارت دا رنګ شو۔ اِنْتَفٰى اِلٰهٌ غَيْرُ اللهِ -

(ترجمه) :- منتفی دے هغه اِلٰه چه کوم غَيْرُ الله دے -

**نهم ترکیب :** هُم غه ترکیب دے البته اِلَّا الله عطفِ بیان دے -

**لسم ترکیب :** دا هم هغه ترکیب دے، صِرف اِلَّا الله به بَدَلُ الْكُلّ وی -

**یوولسم ترکیب :** لَا اِلٰهَ خبر مقدّم دے اِلَّا اللهُ مبتداء مؤخره ده، نو عبارت دا رنګ شو۔ اَللهُ اِلٰهٌ لَا اِلَّا اَیْ لَا غَيْرُهُ

(ترجمه): خاص معبود دے نه غیر - صاحب الکشاف -

د خبر د تقدّم او د مبتداء د اقتران نه په اِلَّا سره مقصود حصر دے -

## د شپیتو ناآشنا الفاظو ترکیب

---

(۱) اَللّٰهُمَّ اِلَّا اَنْ يُّقَالَ: د دے متعلق درے تحقیقات ضروری دی، صیغوی - ترکیبی او معنوی -

**صیغوی تحقیق :** ـــــ د دے د اصل متعلق دوه قوله دی

**اول قول :** اَللّٰهُمَّ اصل کښے یَا اَللّٰهُ وُو، حرفِ نداء په سبب د کثرتِ استعمال سره حذف شو، او په عوض د دے کښے میم مشدّد ده راوړے شو، نو اَللّٰهُمَّ شو، لِهٰذا په دے بانده بغیر د ضرورتِ شعری نه حرف نداء دا دخول جائز نه دی۔ د دے د پاره چه د عِوض او معوّض اجتماع لازم نشی۔

**دویم قول :** د بعضو په نیز بانده دا په اصل کښے یَا اَللّٰهُ اُمَّ لِیْ بِخَیْرٍ وُو، بیا په سبب د کثرتِ استعمال حرفِ نداء حذف شو۔ او ام صیغه دامر ده، همزه وصلیه په مینځ د کلام کښے حذف شوه او میم مشدّد ده په منزله د جزء او گرزیدو نو اَللّٰهُمَّ شو۔

**ترکیبی تحقیق :** ترکیب کښے دوه قوله دی : **اول قول :** په حذف د مضاف سره د مصادرو ظرف واقع کیدل زیات دی۔ لکه : اٰتِیْكَ طُلُوْعَ الشَّمْسِ اَیْ وَقْتَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ" د غه شان د لته کښے هم دے۔ اَنْ یُّقَالَ په تاویل د مصدر سره په حذف د مُضاف سره دا مُستثنیٰ مُفرَّغ مفعول فِیه شو۔

او اَللّٰهُمَّ نه وړاندے مُستثنیٰ مِنه مقدر ده او عام ده۔ تقدیر د عبارت دا رنګ شو۔ هٰذَا الْاَمْرُ حَاصِلٌ فِیْ کُلِّ وَقْتٍ اَللّٰهُمَّ اِلَّا وَقْتَ قَوْلِهٖ کَذَا۔ او اَللّٰهُمَّ په حذف د حرفِ نداء سره جُمله نِدائیه مُعترِضه ده۔

**دویم قول :** دا په اصل کښے دُو یَا اَللّٰهُ اُمَّ لِیْ بِخَیْرٍ فِیْ کُلِّ وَقْتٍ اِلَّا وَقْتَ قَوْلِهٖ کَذَا۔ یَا اَللّٰهُ جُمله نِدائیه ده او اُمَّ صیغه دامر سره د خپل فاعل او د دے متعلقاتو نه او سره د مفعول

فِيهِ نه جُملَه فِعليه اِنشائِيَّه مقصُود بالنِّدَاء ده - يَا د ساقي!
که چرے معنی صحیح وی نو کلام موجب کښے مستثنیٰ مفرغ -
راتلے شی، لکه ؛ قَرَأتُ اِلَّا يَوْمَ كَذَا -

معنوی تحقیق : اَللّٰهُمَّ څلور د معنو د پاره استعمالیږي
(۱): دُعا د پاره، لکه ؛ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلَنَا (۲) د سائل په جواب
کښے راځي - دے د پاره چه جواب په ذهن کښے راسخ شی، لکه :
یو سړے تپوس اوکړي "اَقَامَ زَيْدٌ" او بل جواب د رکړي -
"اَللّٰهُمَّ لَا" - (۳) د پاره د تنبیه په قِلَّت د اَمرِ قَلِيْلُ الْوُقُوع
باندے خواه که حقیقةً قلیل وی، یا د ما قبل په اِعتبار سره
قلیل وی، لکه ، اَنَا اَزُوْرُكَ اَللّٰهُمَّ اِذَا لَمْ تَدْعُنِيْ - او دا
ظاهره خبره ده چه ملاقات د دعوت په صورت کښے کثیر
دے په مقابله د هغه ملاقات کښے چه هغه بغیر د دعوت نه
وی -
(۴) استثناء نه مخکښے راځي په دے شرط چه مستثنیٰ نَادِرُ
الْوُقُوع او یو اَمرِ غریبه وی ، نو د دے مُستثنیٰ ثابتولو د پاره
اَللّٰهُمَّ ذکر کولے شی او الله تعالیٰ نه مدد طلب کولے شی -
یا اِبتِدَاءً د اامر الله تعالیٰ ته حواله کولے شی - روستو دا بیا
په صورت د استثناء سره ثابتولے شی -
(۲) قَوْلُهُ تَعَالیٰ : که چرے په کلام د عربو کښے دا لفظ
راشی نو ترکیب به ئے دا رنګ وی - قَوْل مُضاف "هٗ" ضمیر
ذوالحال - تَعَالیٰ فعلِ ماضی معلوم ضمیر په کښے مُسْتتر دے
هغه ئے فاعل شو دا جُمله فعلیه حال شو -
حال سره د خپل ذُوالحال نه مُضاف الیه د قَوْل د پاره، قَوْل

مُضاف سره دمُضافٌ الیه نه قَوُل شو او دوستو جُمله دے
دپاره مَقُوله شوه، او که چرے کَقَوُلِهٖ تَعَالیٰ راشی نو دے
نه مخکښې به هُوَ یا مِثَالُهٗ مبتداء محذوفه وی او که چرے
قَالَ اللّٰهُ تَعَالیٰ راشی، نو لفظِ الله ذُوالحال او تَعَالیٰ جُمله
به حال شی۔

(۳) سُبُحَانَ اللّٰهِ: دد ے ترکیب داد ے چه دا مفعول
مُطلق وی فعل محذوف دپاره چه هغه سَبَّحْتُ یا اُسَبِّحُ دے

(۴) لَاسِیَّمَا: په دے کښې صِیغوی او مَعنوی تحقیق دا دے
چه لا لِنَفْیِ الْجِنْس ده۔

سِیٌّ اصل کښې سِیُوٌ دَو، واو مُو په یاء سره بدل کړو او
یاء مُو په یاء کښې مدغم کړه، او ماقبل دیاء ته موکسره ورکړه
نو سِیٌّ شو، او دا لازم الاضافت دے۔ لُغت کښې په معنیٰ د
مِثْلٌ سره دے، لکه چه وئیلے شی، "هُمَا سِیَّانِ اَیْ مِثْلَانِ"۔
او کَلاسِیَّ په معنیٰ د بے مِثل سره، او چه کوم څیز بے مِثله
وی، نو هغه خاص وی، د ے وجے نه مَجَازاً دد ے معنیٰ کیږی
خاص طور سره، یا خاص کر سره۔

**ترکیبي تحقیق** ــــــــ دد ے په ترکیب کښې پنځه احتمالات
دی۔

اوّل اِحتمال: لَالِنَفْیِ الْجِنْس ده، او سِیٌّ مضاف مازائده
دے، او د سِیَّمَا مابعد مجرود مُضاف الیه دے، مضاف سره د
مضاف الیه نه متصوب لفظاً اسم د لا، او موجود ئے خبر محذوف
دے۔

دوئیم احتمال: لَالِنَفْیِ الْجِنْس، سِیَّ مُضاف، مَا مَوصُوله۔ یا۔

موصُوفه - ما بعد د دے مرفوُع خبر شو، مبتداء محذوف د پارهٔ یا مبتداء محذوفُ الخبر شوه - مبتداء سره - مبتداء سره د خبر نه جُمله اسمیه سَره د صِله یا صِفت نه مُضاف الیه شو - مُضاف سره د مُضافُ الیه نه اسم د لَاُ شوا و مَوْجُوْدٌ خبر محذوف دے -

دَریم احتمال: لَا لِنَفْیِ الْجِنْس سِیَّ مُضاف مَا مَوصُوله یا مَوصُوفه، ما بعد منصوب مفعول بِهٖ دے د فعلِ محذوفه چه اَعْنِیْ دے فعل سره د فاعل او مفعول بهٖ نه صِلَه یا صِفت شو الخ -

څلورم احتمال: لَا لِنَفْیِ الْجِنْس سِیَّ مُضاف مَا نکره غیر موصُوفه مُمَیِّز مَا بعد ئے تمیز شو (په دے شرط چه هغه اسم نکره وی) مُمَیِّز سره د تمییز نه، مُضافُ الیه د مُضاف شو الخ -

پنځم احتمال: په معنیٰ د خاصکر سره مفعول مُطلق دے د فعلِ محذوف چه هغه اَخُصُّهٗ خُصُوْصًا دے او ما بعد د دے علیحده جُمله شوه -

(۵) سَوَاءٌ کَانَ: سَوَاءٌ نه پس همیشه د پاره دوه څیزونه وی چه دهغے په مینځ کښے مُساوات قائم کیدل مقصود وی او دا لفظ اسم مصدر دے - لهٰذا ادا هم د مصدر په شان صِفت واقع کیږی، لکه: تَعَالَوْا اِلٰی کَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَیْنَنَا -

د دے درے ترکیبونه کیدے شی (۱) سواء په معنے د مُسْتَوٍ سره خبر مُقدَّم او کان سره د اسم او خبر خپل نه مبتداء مؤخره شوه -

(۲) سَوَاءٌ خبر دے د مبتداء محذوف د پاره چه هغه اَلْاَمْرَانِ

دے ۔ نو عبارت دا رنګ شو اَلْاَمْرَانِ سَوَاءٌ ۔ یا د ساتی هر کله چه دا اسمِ مصدر دے نو په دے کښے افراد، تثنیه او جمع برابر دی ۔ په دے وجه سره د دے د پاره "اَلْاَمْرَانِ" خبر واقع کیدل صحیح دی ۔

بیا دا جمله دلالت په جزاء کوی، او ما بعد جمله په منزله د شرط ده چه د هغے جزاء همیشه د پاره محذوف وی ۔

په نیز د علامه رضیؒ سواءٌ خبر دے د اَلْاَمْرَانِ مبتداء محذوف د پاره ۔ او ما بعد جمله د مبتداء محذوف د پاره بیان دے ۔

(۳) سَوَاءٌ په معنیٰ د مُسْتَوٍ سره خبر مُقدّم او کَانَ سره د خپل اسم او خبر نه مبتداء موُخّره ده ۔ او یا د ساتی! هر کله چه د فعل نه فقط معنیٰ مصدری مُراد وی، نو په هغے باندے احکام د اسم جاری کیدے شی،

یا په بل عنوان سره فعل په اعتبار د معنیٰ تَضَمُّنی سره مبتداء کیدے شی، لکه: تَسْمَعُ بِالْمُعِیْدِیْ ۔

(٦) "اَلْاِعْرَابُ لُغَةً اَلْاِظْهَارُ": "اَلْاِعْرَابُ" په حذف د مُضاف سره مبتداء ده اَیْ مَعْنَی الْاِعْرَابِ ۔ او لُغَةً تمییز دے، لنسبت اضافیه دے، او اَلْاِظْهَارُ خبر د مبتداء شو ۔

یا لُغَةً مفعُول لَهٗ دے فعلِ محذوف د پاره اَیْ قُلْنَا ذَالِکَ لِاَجْلِ اللُّغَةِ ۔ او دا په مابین د مبتداء او خبر کښے جمله مُعلّله مُعْتَرِضَه ده ۔

(۷) عَلٰی هٰذَا الْقِیَاسُ: که چرے دا کلمه چرته راشی نو د دے درے ترکیبه کیدے شی (۱) عَلٰی هٰذَا خبر مقدّم دے او اَلْقِیَاسُ مرفوع لفظاً مبتداء موُخّره ده (۲) اَلْقِیَاسَ منصوب لفظاً مفعول

په دے فعلِ محذوف "اَجْرِ" دپاره یعنے "عَلیٰ هٰذَا اَجْرِ الْقِیَاسَ"
(۳) عَلیٰ جار هذا اسم اشاره موصُوف، اَلْقِیَاسِ مجرور لفظاً
صِفت شو، موصُوف سره د صِفت نه مجرور د جار شو۔ جار
سره د مجرور نه خبر مُقَدَّم۔ او ما بعد جُمله هغې دپاره مبتداء
مؤخره شوه۔

(۸) بِلَا سَبَبٍ: دد ے دوه ترکیبه دی (۱) لا په معنیٰ د غَیْرُ
مُضاف ما بعد طرف ته اَوْ سَبَبٍ مجرور بِالْاِضَافَت (۲) سَبَبٍ
اسم دلَا، او خبر د موقع او محل مُطابق محذوف کیږی او دا
جُمله په محل د خبر کښې وی۔ اَوْ د دے مطابق سَبَبٍ نکره۔
مفرده مُتَّصله ده۔ په دے وجه سره مبنی بر فتحه به وی
لیکن دا د نادر اتو نه ده۔

(۹) بِخِلَافِ: دد ے ترکیب دا دے چه بِخِلَافِ جار مجرور،
ظرف مستقر مُتعلق په ثَابِتٌ یا مُتَلَبِّسٌ پورے، دا خبر د
مبتداء محذوف چه هغه هٰذَا الْحُکْمُ دے۔ نو عبارت به دا
شان وی "هٰذَا الْحُکْمُ ثَابِتٌ بِخِلَافِ"۔
اَوْ بعضو دا ترکیب کړے دے چه خِلَافِ خبر دے او باء
زائده ده، لکه څنګه چه قُرآن مجید کښې دی "وَجَزَاءُ سَیِّئَةٍ
بِمِثْلِهَا" کښې باء زائده ده او "مِثْلُهَا" ئے خبر دے۔

(۱۰) خِلَافًا: دد ے لفظ دوه ترکیبه کیدے شی (۱)
مفعول مُطلق دے د فعلِ محذوف "خَالَفَ" دپاره او دا اسم
مصدر دے۔
(۲) په معنیٰ د مُخَالِفًا سره د قَالَ یَا اَقُوْلُ د محذوف د فاعل
نه به حال وی او ما بعد به جار مجرور وی چه هغه د ظرفِ

مُسْتَقَرٌ ثَابِتًا محذوف پورے مُتعلّق دے او د خِلَافًا صِفت شو.

(۱۱) کَمَا مَرَّ: د دے ترکیب به دا رنگ دی کاف حرف جار ما موصُوله، مَرَّ فعل سره د فاعل نه صِله د موصُول، موصُول سره د صِلے نه مجرور د جار، جار سره د مجرور نه ظرف مستقرٌ متعلّق په ثَابِتٌ محذوف پورے هغه خبر شو د مبتداء محذوف د پاره. چه د هغے مبتداء مِثَالُهُ یا هُوَ ضمیر دے، عبارت به دا رنگ شی. مِثَالُهُ ثَابِتٌ کَمَا مَرَّ یا هُوَ ثَابِتٌ کَمَا مَرَّ.

(۱۲) وَمِنْ ثَمَّ: په دے کښے مِنْ تعلیلیّه دے او ثَمَّ اسم اشاره ده.

په اعتبار د اصل سره وضع شوے دے مکان حِسّی بَعِیْد د پاره. لیکن کله مَجَازاً په دے سره اشاره کیدے شی مَکَانِ بَعِیْد غَیْرِ حِسِّی طرفته. نو په دغه وقت کښے به د دے تفسیر وَمِنْ هُنَاكَ سره کیږی.

او کله مَجَازاً د دے سره اشاره کیږی مَکَانِ قَرِیْب غَیْرِ حِسِّی طرف ته، د دے تفسیر وَ مِنْ هٰهُنَا سره کیږی، په اول کښے مجاز په یو وجه سره دے، او په دویم کښے مجاز په دوه وُجُوهو سره دے.

او همیشه د پاره مِنْ ثَمَّه جار مجرور د ما بعد پورے مُتعلّق وی، او دغه شان د مِنْ هٰهُنَا او مِنْ هُنَاكَ ترکیب به هم داوی چه جار مجرور به همیشه ما بعد فعل پورے یا شِبْه فعل سره متعلّق وی.

(۱۳) وَلِهٰذَا: د دے ترکیب به دا رنگ وی، لام جاره هٰذَا اسم اشاره مجرور محلاً. جار سره د مجرور نه ظرف لَغْوٌ مُتعلّق په

مابعد فعل یا شِبْهِ فِعل پورے -

(۱۴) کذا : دا دوه قسمه ترکیبه کیدے شی (۱) کذا داسماء کنایا نو نه دے - په دے صورت کښې به دا مُمَیَّز وی او مابعد به تمیز وی - بیا ممیز سره د تمیز نه مفعول به جوړیږی ما قبل د پاره -

(۲) کاف چه جُدا وی او "ذا" جُدا وی نو دے وخت کښې به دا تشبیه د پاره وی او جار سره د مجرور نه مُتعلّق په فعل یا شِبْهِ فِعل پورے -

(۱۵) فَبِهَا : کوم ځائے کښې چه دیو امر متعلق دوه جملے شرطیے وی یوه مُثبتَه او بله مَنْفِی وی نو دا کلمه د کلمے مُثبت د جزاء په طور باندے مذکور یا محذوف راځی، لکه: اِنْ جِئْتَنِیْ فَبِهَا وَاِلَّا اَضْرِبُکَ - دا دے د ترکیب مُتعلّق دوه قوله دی (۱) دا په اصل کښې بَهِیَ وُو د بَهِیَ بَهَاءً نه په معنی د حَسُنَ سره -

فَاء جزائیه پرے داخله شوه نو فَبِهَا شو دا جُمله فعلیه ده (۲) فاء جزائیه باء جاره که ضمیر مجرور چه راجع دے خَصْلَةٌ حَسَنَةٌ طرف ته - جار سره د مجرور نه ظرف مستقر متعلّق په مَقْرُوْنٌ یا مَقْرُوْنَةٌ پورے - او دا سره د خپل متعلّق نه خبرد مبتداء محذوف شو چه هغه (هِیَ) دے یا (هُوَ) دے - اُوس عبارت دا رنګ شو فَهُوَمَقْرُوْنٌ بِالْخَصْلَةِ الْحَسَنَةِ - مبتداء سره د خبر نه جُمله اسمیّه خبریه جزاء شوه -

(۱۶) مُطْلَقًا : دا دے دوه ترکیبه کیدے شی (۱) عموماً حال جوړیږی د خپل ما قبل فعل نه (۲) - دا اطلق فعل محذوف نه

مفعول مُطلق گرځي۔ په دے صُورت کښے به دا مَصدرِ میمی وی۔

(۱۷) مَثَلاً : دا مفعول مُطلق گرځي فِعلِ محذُوف مَثَلْتُ یا اَمْثُلُ دپاره۔

(۱۸) عُمُوْمًا، خُصُوْصًا، عَامَّةً، خَاصَّةً، صِدْقًا، حَقًّا، قَطْعًا، وَعْداً۔ دا الفاظ چه منصُوب وی نو فعلِ محذوف دپاره مفعول مُطلق گرځي۔

(۱۹) بِنَاءً : دا لفظ چه کوم ځائے کښے راشی نو دد دے درے ترکیبه کیدے شی (۱) مفعول مُطلق به وی دفِعلِ محذُوف دپاره "یعنی بَنَیْنَا بِنَاءً" (۲) مفعول لَهٗ به وی فِعلِ محذُوف دپاره یعنے" قُلْنَا ذَالِكَ بِنَاءً" یا "فَعَلْنَا ذَالِكَ بِنَاءً"۔

(۳) یا په معنی "بَانِیاً" سره حال دے دفاعِل نه یا په معنے "مَبْنِیًّا" سره دے او حال دے د مفعول نه۔

(۲۰) اَلْبَتَّةَ : دا کلمه چه کوم ځائے کښے راشی نو په ترکیب کښے مفعول مُطلق گرځي د فعلِ محذُوف بَتَّ دپاره، او دا لفظ مصدر دے، بَتَّ یَبُتُّ (نَصَرَ) په معنی دقَطَعَ سره۔

دا لفظ هغه ځائے کښے ذکر کیږی کوم ځائے کښے چه شك او تردّد ختمول مقصُود وی، او د یقین معنی پیدا کول مقصُود وی۔ او دا لفظ سره دالف لام نه او بغیر د الف لام نه دواړه قِسمه استعمالیږی۔

یادساتئ! دا اَلْبَتَّه په همزه کښے اختلاف دے، بعضے دے ته وَصْلِي وائی او بعضے ورته خلاف القیاس قَطْعِیْ وائی۔

(۲۱) اَیْضًا : دا همیشه دپاره مفعول مُطلق وی د فعلِ محذوف

دپاره دا په اصل کښې آضَ اَیضًا وَو۔ دا جُمله فِعلیّه خبریّه مُعتَرِضَه وی ۔

فائده : ددے استعمال دپاره درے شرطونه دی (۱) دوه څیزو نه به وی، لهذا "جَاءَ زَیدٌ اَیضًا" وئیل غلط دی (۲) ددواړو څیزو نو حُکم به یو وی، لهذا "جَاءَ زَیدٌ وَمَاتَ عَمرٌو اَیضًا" وئیل غلط دی (۳) ددواړو څیزونو استغناء به هُم دیو بل نه مُمکن وی، لهذا "اِختَصَمَ زَیدٌ وَعَمرٌو اَیضًا" وئیل هُم غلط دی ۔

(۲۲) عَادَةً : دا لفظ عُمُومًا ترکیب کښې تمیز واقع کیږی : لکه : "وَالثَّابِتُ عَادَةً کَالمُتَیَقَّنِ بِهٖ" ۔

(۲۳) لُغَةً : دا لفظ هُم عُمُومًا ترکیب کښې تمیز واقع کیږی۔

(۲۴) غَالِبًا : ددے لفظ څلورقِسمه ترکیبو نه کیدے شی ۔

(۱) دے نه دماقبل فعل مصدر به محذُوف وی، اوهغه به موصُوف وی او غَالِبًا به دهغے صفت وی، بیا دا صِفت اوموصُوف به دماقبل فعل دپاره مفعول مُطلق گرځی ۔

(۲) دے نه مخکښې به زَمَانًا موصُوف محذُوف وی، بیا صِفت سره دموصُوف نه مفعول فیه گرځی دماقبل فعل دپاره (۳) دماقبل فعل نه به دا حال وی (۴) دا منصُوب بِنَزعِ الخَافِض دے یعنې غَالِبًا په اصل کښې مجرور وو په فِی حرف جارسره چه دے نه ماقبل محذُوف دے، اصل عبارت دارنګ دے : فِی غَالِبِ الاِستِعمَالِ ۔

بیا فِی حذف کړے شوا و غَالِبًا منصُوب شوا و اَلاِستِعمَالِ مُضاف الیه مُو حذف کړو او په مُضاف باندے مُو تنوین داخِل کړو

نو غالباً شو ۔

(۲۵) : آنِفاً : دا دے لفظ دوه ترکیبه کید ے شی (۱) مفعولٌ فِیْهِ کرځی د ظرفِ زمان کید و په وجه سره په معنیٰ دمُؤتَنِفاً سره (۲) احتمال د حال هم لری لکه چه قرآن مجید کښے راغلی دی ؛ "مَاذَا قَالَ آنِفاً" ۔

(۲۶) عَلیٰ اَنْ نَّقُوْلَ : دا عَلیٰ په معنیٰ د علاوه سره راځی او دا هغه ځائے کښے ذکر کیږی کوم ځائے کښے چه مابعد جواب د ماقبل جواب نه اقوی وی ۔ ددا سے قسمه عبارت دوه ترکیبه کید ے شی (۱) دا به ظرفِ لغو وی او د ماقبل فعل متعلّق به وی (۲) ۔ دا به ظرفِ مُستَقَرّ دی او خبر به وی، او دے دپاره به مبتداء محذُوف وی چه هغه "اَلتَّحْقِیْقُ" دے نو عبارت به داسے وی ۔ "وَالتَّحْقِیْقُ عَلیٰ اَنْ نَّقُوْلَ" ۔

(۲۷) فَصَاعِداً : دا دے دوه ترکیبه کید ے شی (۱) فاءِ عاطِفَه ده ، فَصَاعِداً منصُوب لفظاً حال دے چه دے د معطوف علیه او ذُوالحال او عامِل د دے داره مقدّر دی ، نو عِبارت به داسے جوړیږی ۔ "اُذْکُرِ الْعَدَدَ نَازِلاً فَصَاعِداً" ۔

(۲) فاءِ زائده ده او صَاعِداً په معنیٰ د صُعُوْداً مصدر سره دا مفعول مُطلق شو فعلِ محذُوف دپاره یعنے "اِصْعَدْ صُعُوْداً" ۔

(۲۸) دَائِماً : دا دے درے ترکیبه کید ے شی (۱) دا صِفت دے زَمَاناً یا وَقتاً محذُوف دپاره او موصُوف سره د صِفت نه دا مفعول فِیهِ شو (۲) یا دا صِفت دے د مَصدر محذُوف دپاره بیا موصُوف صِفت مفعول مُطلق شو ۔ (۳) دا د ماقبل نه حال دے ۔

(٢٩) اَصْلاً : دا ظرفِ زمان مفعول فِيهِ وی، ماضی منفی نه پس په معنیٰ د قَطُّ سره او د مُضارع منفی نه پس په معنیٰ د اَبَداً سره وی، او دا ترکیب د "رَأْساً" هم دے۔

(٣٠) فَضْلاً : مَثَلاً و یُلے کیږی: "فُلَانٌ لَایَمْلِكُ دِرْهَماً فَضْلاً عَنْ دِیْنَارٍ" یعنے فلانے سړے نه د درهم مالك دے او نه د دینار۔ د دے درے ترکیبه کیدے شی (١) دا فعلِ محذُوف د پاره مفعولِ مُطلَق دے یعنے "فَضُلَ فَضْلاً"۔
بیا دا جُملَه خپل ماقبل اسمِ نکره د پاره صِفت کرځی (٢) دا حال کرځی د نکرے مُخَصّصے نه چه هغهٔ کښے تخصیص د نکرے تَحْتَ النَّفْیِ واقِع کید و سره راځی۔
(٣) دا به د ماقبل نکرے صِفت وی، بهَرحال نفی به د قید او مُقیّد دواړو وی۔ لکه: "فَمَا تَنْفَعُهُمْ شَفَاعَةُ الشَّافِعِیْنَ" کښے نفی د نفع او شَفَاعَتْ دواړو ده۔

(٣١) "اَهْلاً وَّسَهْلاً": دا د واړه کلیے د خوشحالئ د پاره وئیلے کیږی، چه ترکیب ئے دا دے، دا د فعلِ محذوف د پاره مفعُول بِهٖ کرځی۔ عبارت دا رنګ دے۔ اَتَیْتَ اَهْلاً وَوَطِیْتَ سَهْلاً ته خپلو خلقوته راغلے۔ او تا نرمه زمکه پا ئمال کړه، یعنے ته خوش اخلاقه، نرم خُویَه او سخی خلقوته راغلے۔

(٣٢) مَرْحَباً: دا کلمه هم د خوشحالئ د پاره وئیلے شی۔ په معنیٰ د مَکَانٍ ذَارَحُبَةٍ۔ یعنے فراخه ځائے۔
دا په ترکیب کښے ظرفِ زَمَان مفعول فِیهِ کرځی فعلِ محذُوف د پاره یعنے "رَحُبَتَ مَرْحَباً"۔ یعنے ته به دا ځائے فراخه بیا موے

(٣٣) تَارَةً : دا لفظ ماقبل د پاره مفعولُ فِیهِ کرځی، لکه: "اَمْ

اَمِنۡتُمۡ اَنۡ یُّعِیۡدَکُمۡ فِیۡهِ تَارَةً اُخۡرٰی" -

(۳۴) اَبَدًا : دالفظ هم ظرفِ زمان مفعُول فِیۡهِ کرځی.

لکه: "وَلَنۡ یَّتَمَنَّوۡهُ اَبَدًا" -

(۳۵) بَیۡنَ دُوۡنَ : دا د اسماءِ ظروفِ مُعۡرَبَه وُنه دی، او

لازم الاضافت دی، کله چه دا منصُوب وی نو مفعول فِیه کرځی

(۳۶) اَلۡاٰنَ اَلۡئٰنَ : دا مَبۡنِی بر فتحه ظرفِ زَمَان مفعولٌ

فِیۡهِ کرځی- لکه ؛ اَلۡئٰنَ وَقَدۡ عَصَیۡتَ" دا مفعول فِیه دے

فعلِ محذُوفُ "اَتُوۡمِنُ" دپاره -

(۳۷) مَعًا : دا ظرف لازم النَّصب دے، په ظرفِ زمان

او مکان دواړو کښے مُستعملیږی، لکه ؛ جِئۡنَا مَعًا : اَیۡ فِیۡ

زَمَانٍ" یعنے ؛ مونږ په یو وخت کښے راغلو -کُنَّا مَعًا اَیۡ فِیۡ

مَکَانٍ" - یعنی مونږ په یو ځائے کښے وُو - دا دوه قسمه مُستعملیږی

(۱) مَعَ التَّنۡوِیۡن - "مَعًا" (۲) بِغیر د تنوین نه مَعَ الۡاِضَافَت -

لکه : "مَعَهٗ" - تفصیل ئے دا رنګ دے چه مَعَ مُصاحبت دپاره

راځی چه هغے دپاره دُوه څیزونه ضروری دی،

که چرے مَعَ د دغه دواړو څیزونو په مابین کښے راغلو، نو

دویم څیزته به مُضاف وی، لکه: "اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصَّابِرِیۡنَ" -

په دے صُورت کښے دا مفعول فِیه کرځی -

او که چرے مَعَ د دواړو څیزونو نه پس راغلُو نو بیا به مَعَ

التَّنۡوِیۡن بغیر د اِضافت نه مُستعملیږی، او په دے صُورت

کښے ئے بیا دُوه ترکیبه کیدے شی (۱) مفعول فِیه (۲) په معنٰی

د "مُجۡتَمِعِیۡنَ" سره به وی او ماقبل نه به حال وی -

(۳۸) جَمِیۡعًا : دالفظ چه منصُوب راشی نو عُمُومًا حال واقع

کیږي، لکه: "اِهْبِطُوْا مِنْهَا جَمِيْعًا" -

(۳۹) لَا بُدَّ: لفظِ لَا نَافِيَه او بُدَّ په معنیٰ د مُفَارَقَتْ سره مرکب دے، په دے اعتبار سره لَا بُدَّ په معنیٰ د لَا مُفَارَقَتْ دے - او دے د پاره معنیٰ د وجُوب او لزُوم لازِمَه ده - اُوس د دے معنیٰ دا شوه - ضروري ده او لازمي ده -

تَرکیبي حیثیت: (۱) په نیز د سیبویه باندے لَا بُدَّ د شِدَّتِ اِتِّصَال په وجه سره د "حَبَّذَا" په شان مُفرد گرځید لے دے هٰذَا لَا بُدَّ مبتداء ده او مابعد ئے خبر دے -

او دا ترکیب د بعضو نُحَاتو نه د "حَبَّذَا زَیْدٌ" منقُول دے -

(۲) لَا لِنَفْيِ الْجِنْسِ - بُدَّ مَبْنِيْ بَرفَتحَه اِسم دے، او د دے خبر د مِنْ نه پس راځي، کله مذکور وي او کله "مِنْهُ" او یا "مَوْجُوْدٌ" محذُوف وي - او دے نه پس لام جاره هم راځي، هغه همیشه د پاره د بُدَّ متعلِّق وي -

(۴۰) لَا مَحَالَةَ: د دے ترکیب دا دے: لَا لِنَفْيِ الْجِنْسِ، مَحَالَةَ مبني برفتحه اسم، او خبر ئے مَوْجُوْدٌ یا مِنْهُ اکثر محذُوف وي، او دا مَحَالَةَ د حَوْلٌ نه دے، مصدر میمي په معنیٰ د اوړیدلو سره، د اتاکید د پاره راځي - چه معنیٰ ئے ضروري او لابُدي وي -

(۴۱) لَا بَأْسَ: د دے ترکیب دا دے: لَا لِنَفْيِ الْجِنْسِ - او بَأْسَ ئے اِسم دے، او خبر ئے اکثر محذُوف وي -

(۴۲) لَا غَيْرُ: د دے په ترکیب کښے درے قوله دي (۱) - لَا لِنَفْيِ الْجِنْس، غَيْرُ مَبْنِيْ عَلَى الضَّمِ مَنْصُوْب محلاً اسم د لَا، چه خبر ئے مَقُوْلٌ لَكَ محذُوف دے -

(۲) لَا لِنَفْيِ الْجِنْس غَيْرُ مَبْنِيْ بَرفتحه اسم د لَا (۳) - لَا مُشَبَّه بِلَيْسَ

غَيْرُ مَرْفُوعٍ مُنَوَّن اسم دلاٰ، چه خبرئے مَقُولًا لَكَ محذُوف دے۔

**(۴۳) اَوَّلاً وَبِالذَّاتِ:** لفظِ اَوَّلاً بناء بر ظرفيّت منصُوب مفعول فِيهِ دے۔ وَبِالذَّاتِ کښے وَاو حرف عَاطِفه دے، اَوَّلاً ئے مَعْطُوف عَلَيْهِ دے، او بَاء په معنیٰ د فِيْ سره دے. لَفظِ اَوَّل که چرته د يو موصُوف صِفت واقع وی يا مِنْ تَفْضِيْلِيَّه سره مُستعمل وی، نو دغه وخت به بيا غير مُنصَرِف وی۔ او بغير د دے دواو صورتونو نه به مُنصَرِف وی بناء بر ظرفيّت او منصُوب بالتَّنوِيْن به وی هميشه د پاره -

**(۴۴) مَاذَا:** د دے څلور ترکيبونه کيدے شی

(۱) مَا استفهامِيَّه په معنیٰ د اَیُّ شَيْءٍ سره موصُوف۔ ذَا اسم اشاره موصُوف آخر شو۔
مابعد فعل ئے صِفت شو، صِفت سره د موصُوف نه مفعول به شو د ماقبل فعل د پاره -

(۲) مَا موصُوفه استفهامِيَّه ذَا اسم موصُول، مابعد فعل د دله صِلَه شوه، موصُول سره د صِلے نه صِفت د مَا شو۔ موصُوف سره د صِفت نه مفعُول به د فعل شو -

(۳) مَاذَا مُرَكَّب استفهامِيَّه په معنیٰ د اَیُّ شَيْءٍ سره هغه موصُوف، مابعد فعل ئے صِفت شو، موصُوف سره د صِفت نه مفعول به د فعل شو -

(۴) مَا استفهامِيَّه موصُوف ذَا زائده، مابعد فعل ئے صِفت شو، د اهم ماقبل د پاره مفعول به شو، لکه "فَانْظُرْ مَاذَا تَرٰى" که چرے مَاذَا نه وړاندے يا روستو فعل مُتَعَدِّیْ وی، او دهغے مفعول به موجود نه وی، نو مَاذَا منصُوب مَحَلًّا مفعول۔

به کړي، اَو که چرے دے نه مخکښے څه فِعل نهٔ وی یا مَا بعد فِعل وی، لیکن هغه مفعُول به کښے عمل کوی یا سره وستو فعل نه وی، نو مَا ذَا مبتداء یا خبر کرځی -

(۴۵) مَا قَبلَهَا مَا بَعدَ هَا: د دے ترکیب به همیشه د پاره داوی - مَا مَوصُوله، بَعدَهَا ظرف مفعُول فِیهِ د دے فعل - محذُوف "ثَبتَ" وغیره د پاره -

(۴۶) کَیفَ: که چرے دِ دے نه پس اسم وی نو دا به خبر مقدم وی او هغه به مبتدا مُوخّره وی، لکه: کَیفَ اَنتَ، که چرے د دے نه پس فعل وی نو دا به حال مُقَدَّم وی، لکه: کَیفَ - تَقرَأُ -

اَو که چرے کَیفَ نه پس دا او وی، نو کَیفَ نه پس جُمله به محذُوف وی

(۴۷) فَحِینَئِذٍ - فَیَومَئِذٍ: دا په اصل کښے حِینَ اِذْ کَانَ کَذَا وو - کَانَ کَذَا مُو حذف کړو - او په عِوَض د دے کښے مُو په اِذْ باندے تنوین را وړو - د دے ترکیب به همیشه د پاره دا وی فَاء تفریعیّه، حِینَ مُضاف اِذْ طرف ته او اِذْ مُضاف دے کَانَ کَذَا طرف ته -

کَانَ فِعلِ ناقِص، ضمیرئے اسم شو، کَذَا ئے خبر شو - کَانَ سره د اسم او خبر نه جُمله فِعلِیّه مُضاف الیه شو - مُضاف سره د مُضاف الیه نه، مُضاف الیه د حِینَ مُضاف شو، مُضاف سره د مُضاف اِلیه نه مفعُول فِیهِ مُقَدَّم شو، او که چرے حِینَئِذٍ باندے فَاء داخله وی نو دا به همیشه د پاره مفعُول فیه مقدَّم وی فعلِ مُوَخَّر د پاره - آو که چرے بغیر د فَاء نه وی، نو کله د فعلِ مقدَّم او کله د فعلِ مؤخر د پاره مفعُول فیه کرځی

(۴۸) **فَقَطُ**: فَقَطُ کښې فَاءِ جَزَائِيَّه وی - او دے نه مخکښې دهر مُقام مُناسِبُ شرط مُقَدَّرُ وی - او قَطُ هميشه جَزاءِ وی -
اَلْبَتَّه د قَطُ په معنی کښې درے قوله دی (۱) د علامهٔ زمخشری په نيز اسم فعل په معنی د اَمرسره دے - يعنے - فَانْتَهِ -
(۲) په نيز د جُمْهُور اسمِ فِعْل په معنی د مُضارِع سره دے په معنی د يَكْفِيْ سره -
(۳) د بعضُو په نيز په معنی د حَسْبُ سره دے - ياد ساتئ! اَوَّلنی دواړو صُوره تو نوکښې به جُمله فِعلِيَّه وی، او په دويم صُورت کښې به جُمله اسميَّه جزاء وی -
(۴۹) **وَحْدَهٗ**: دا لفظ هميشه دپاره په تاويل د مُنفَرِدًا سره د ما قبل نه حال وی -
(۵۰) **نَاهِيْكَ بِكَذَا**: د دے درے ترکيبه کيدے شی -
(۱) نَاهِيْكَ په معنی د كَافِيْكَ سره - كَافِيْ اسمِ فاعِل صِيغَهٗ صِفت قائم مُقام د مبتداء - او كاف ضمير مفعول به، باء زائِده كَذَا فَاعِل قائم مُقام د خبر شو - دا جُمله اسميَّه خَبريَّه شوه -
(۲) نَاهِيْكَ خبر مُقَدَّم باء زائِده - او كَذَا مبتداء مُؤَخَّره -
(۳) نَاهِيْكَ په معنی د "يَكْفِيْكَ" سره - كاف ضمير مفعولٌ بِهٖ باء زائِده - كَذَا مرفوع محلًا فاعِلُ -
(۵۱) **وَيْحَكَ**: دا اسمِ فعل په معنے د مُضارِع "اَتَأَسَّفُ عَلَيْكَ" سره
(۵۲) **لَعَمْرِيْ**: اَصل عبارت دا دٔو - اُقْسِمُ لِوَاهِبِ عُمْرِيْ يعنی زه قسم کوم په ژوند بخښونکی باندے -
(۵۳) "اَلحَقِيقَةُ مَا بِهِ الشَّيْئُ هُوَ هُوَ" د دے ترکيب دا دے اَلْحَقِيقَةُ مبتداء ده - او باقی ټول خبر دے، مَا موصوله - باءِ

سببيّه ده - او د ضمير مجرور مرجع مَا موصُوله ده - او بِهِ الشَّيْءُ يُ صِلَه ده - دا ټول اُمُور متفقٌ عَلَيْهِ دي، ليکن دِبِهِ الشَّيْءُ هُوَهُوَ په ترکيب کښې دوه قوله دي (۱) اَلشَّيْءُ مبتداء او ضمير اوّل فَصل دے، او دويم ضمير ئې خبر دے، او بِهِ جار مجرور د دے متعلّق دے، کوم چه د مبتداء او خبر په منځ کښې دے (۲) اصل عبارت دا دے: "مَا يَكُوْنُ بِهِ الشَّيْءُ هُوَهُوَ" په دے کښې جار مجرور د يَكُوْنُ محذُوف متعلّق دے، اوّلنې ضمير فصل دپاره دے - او دويم ضمير منصُوب مَحَلًّا خبر دكَانَ دے -

يَادساتئ ضمير مرفُوع مُنفَصِل او منصُوب مُنفَصِل ديو بل په ځائې مَجَازاً استعماليږي -

(۴ ۵) اَلْمَاهِيَّةُ مِنْ حَيْثُ هِيَ هِيَ: دد ے ترکيب دا دے چه اَلْمَاهِيَّةُ موصُوف مِنْ زائِده، حَيْثُ مُضاف، او دواړو ضمائرو کښې يو ضمير مبتداء او بل خبر دے -

بيا مبتداء سره د خبر نه جُمله اسميّه مُضاف اليه د مُضاف، مُضاف سره د مُضاف اليه نه ظرفِ مستقرّ صِفت د موصُوف، بيا موصُوف سره د صِفت نه، مبتداء، چه خبر ئې کله مقدّم وي او کله مُوَخّر وي -

(۵۵) لَيْسَ هٰذَا كَمَا زَعَمَهُ فُلَانٌ صَوَابًا: -

دد ے ترکيب دا دے، چه هٰذَا د لَيْسَ اسم دے، او صَوَابًا ئې خبر دے -

او كَمَا زَعَمَهُ ظرفِ مُستَقرّ مُتعلّق په كَائِنًا پورے، كَائِنًا حال د هٰذَا نه يا ظرفِ لَغْو مُتعلّق په صَوَابًا پورے -

او که چرے معمُول د مصدر ظرف وي، نو تقديم ئې جائز دے -

او که چرته د لَيْسَ شان ته خبر نه وی نو کَمَا زَعَمَهٗ ئے خبر کړی۔

(۵۶) هَلُمَّ جَرًّا: ترکیب ئے داد ے ۔ هَلُمَّ اسمِ فِعل په معنی اِئْتِ سره دے، لیکن اِتْیَانِ حِسِّی مُراد نه دے بلکه مُراد ترینه دَوَام او اِسْتِمْرَار دے، لکه: اِمْشِ عَلٰی هٰذَا الْاَمْرِ وَسِرْ عَلٰی هٰذِهِ الْوَتِيْرَةِ کښے مَشْیِ بِالْاَقْدَام مُراد نهٔ دهٔ، بلکه مجازاً دَوَام او اِسْتِمْرَار مُراد دے، لِهٰذَا د هَلُمَّ جَرًّا جمله لفظاً اِنْشَائِيَّه او معنیً خبریَّه وی۔

هَلُمَّ په لُغَتْ د حِجَازِيْنُو کښے غَيْرِ مُتَصَرِّفْ دے۔ او په لغت د بنو تمیم کښے مُتَصَرِّفْ دے، هَلُمَّ، هَلُمَّا، هَلُمُّوا، هَلُمِّيْ، هَلْمُمْنَ، لیکن د مُحَقِّقِيْنُو په نیز دا لُغَتِ غیر فصیحه دے۔

جَرًّا: د دے کثیر ترکیبونه کیدے شی (۱) جَرًّا، مفعولِ مُطْلَق دے، او فِعل ئے محذوف دے یعنی جَرَّ جَرًّا۔

(۲) په اعتبار د معنی سره د هَلُمَّ د پاره مفعولِ مُطْلَق دے ځکه چه د هَلُمَّ او جَرًّا دواړو معنی دَوَام او اِسْتِمْرَار دے لِهٰذَا معنی دا شوه، اِسْتَمَرَّ اِسْتِمْرَاراً۔

(۳) یا تمییز دے۔ یعنی مِنْ حَيْثُ الْاِسْتِمْرَار۔

(۴) دا په معنی د جَارًّا سره حال دے د ضمیر د هَلُمَّ نه۔

(۵۷) لَمَّا: دا ظرف دے، کله چه ماضی باندے داخل شی نو معنی د شرط لره مُتَضَمِّنْ دے۔

او جواب د لَمَّا مفعُولِ فِيْهِ وی۔ امام سیبويهٗ فرمائی چه لَمَّا عَجِيْبَه کلمه ده، که ماضی باندے داخله شی۔ نو

ظرف وی، او که چرے مُضارع بانڈے داخِلَه شی، نُو بیا حرفِ جازِم دی، او که چرے دے دواړو نه عَلاوه وی، نو بیا حرفِ اِستِثنَاء ده په معنی دِ اِلاَّ سره -

(۵۸) هٰذَا : عُلَمَاءِ معقُول یوضرورِی مضمون بیانولو نه پس لَفظِ هٰذَا ذکرکوی، دے دپاره چه ددغه مضمون اَهمِیَّت او وَقعَتْ طرف ته اشاره شی -

هٰذَا ددے مشارٌاِلیهِ اَلفَاظ یا مَعَانِي مَخصُوصے وی، کومے چه مخکښے بیان شوے وی.

اِدَیاد ساق : اسم اشاره کله کله تَرغِیبْ او تَنشِیط فِے الطَّلَبْ دپاره عَلیٰ سَبِیلِ المَجَازْ غَیرِ مَحسُوس کښے استعالیږی کَمَا فِیْ قَولِهٖ تَعَالیٰ : ذٰلِکُمُ اللّٰهُ رَبُّکُمْ -

آو ددے په ترکیب کښے دوه احتمالات دی (۱) دا په دفعلِ محذُوف دپاره مفعُول به شی -

او عبارت به داسے شی - خُذْ هٰذَا -

(۲) هٰذَا مُرَکَّب دے - هَا اسمِ فِعل په معنی دخُذْ سره - او ذَا اسمِ اِشَارَه مَنصُوب مَحَلاً مفعُولٌ بِهٖ دے نو اوس عبارت دا رنګ شو - خُذْ ذَا -

والله اَعْلَمُ وَعِلمُهٗ اَتَمُّ وَاَحکَمُ -

# الغفاری علی الترمذی

من افادات

شیخ الحدیث الدکتور

سید شیر علی شاه المدنی

المرتب

محمد عبد اللہ غفاری

الکاتب

سخی محمد مزاری افغانی

من يوت الحكمة فقد اوتي خيرا كثيرا

# تسهيل الحساب

# في

# تحقيق خلاصة الحساب

تاليف

العبد الضعيف المولوي

عبد الرازق

احساس الحق القندهاري

«العثماني كتابتون»




«العثماني كتابتون»

# فرائد المیزانیه

پښتو شرح

# صرف بهائی

مؤلف

جامع التحقیق والتدقیق
ابو محمود حسن محب الله اخندزاده
الزابلی المیزانی الحنفی النقشبندی

ناشر
مکتبه رحمانیه
بند میټها چوک کوئټه